# حرګ

نهم کال لومړۍ ګڼه – پرلپسې ۷۸ ګڼه – لینده ۱۳۹۲ ل، صفرالمظفر ۱۴۳۵ ق – دسمبر ۲۰۱۳ م



دجدي شپږمه دامریکایانو لپاره دعبرت مهم ټکي لري!











دریو اتلانو، امریکایانو ته ۲۰۰ میلونه زیان واړاوه

امریکا ته نوکرنه؛ افغانستان کې پوځي شتون مهم دی

امریکا یکه تصور به زانو زدنش نه میشد

دیوید کامرون په هلمند کې کومه لاسته راوړنه یادوي؟

۲۰۱۳ دمجاهدینو دپوځي وړتیا او سیاسي بریا کال و!

داتلانو بهیر

# ځرک

علمي ، فرهنګي ، ټولنیزه اسلامي خپرونه

## سرلیک




نهم کال لومړۍ ګڼه – پرلپسې ۷۸ ګڼه – لیندۍ ۱۳۹۲ل، صفرالمظفر
۱۴۳۵ق-دسمبر۲۰۱۳م

**امتیاز :**

دامتیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ،
جمیل میړنی او افضل
محمد تراب

**ګڼوت :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلدارې |
| امریکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ |
| | ۲۵ کلدارې |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداری دپالیسي ترجمانې وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی .

**پته :**

تخنیکي چارې : عابد مجاهد

کابل : دڅرک دفتر



srak_111@yahoo.com

# ۲۰۱۳ دمجاهدينو د پوځي ورځ تيا او سياسي بريا کال و !

امريکاواوناټوااټکل کړی ووچې په ۲۰۱۳ کال به دخپل ټول وحشت اوزور ازمايې په کارولواوور ستيوسياسي حربوپه استعمال سره ، مجاهدين دومره کمزوري کړي چې د۲۰۱۴ کال په رادبره کيدوسره به هغوی له هرډول جنګي وړ تيااوجهادي تکتيکونوپلي کولوڅخه خدای مکړه ناتوانه اوبې وسه وي اوپه ډيرې ارامی به خپلې يوشمير قواوي له افغانستان څخه وباسي اوپاتي نورې به خپلولسوپوځي اډوکې ته نقل کړي اوضمنابه نړۍ ته داخبره هم په ډاګه کړي چې ددوی جګړه کاميابه شوه اوهغه موخې يې ترلاسه کړي ، دڅه لپاره چې هلته تللي وو.
دسيفتي افس په نامه يوه غيره دولتي اروپايي تحقيقاتي موسسه وايي که څه هم اټکل داوه چې په ۲۰۱۳ کال به دطالبانو پوځي قوت اوبه کړل شي ، ځکه امريکايانوکلک تصميم نيولی وو چې وسلوال مخالفت به له پښو غورځوي اوطالبانوته به داموقع په لاس نه ورکوي چې خپل تکتيکونه وکاروي ؛ خودهمدې کال په ړومبيودريومياشتوکې طالبانو نيږدې ۲ نيم زره داسې بريدونه ترسره کړل چې دامريکا، ناټواوداخلي قواووټول جګړه ييزپلان يې له سختوستونزواوخنډونوسره مخ کړ اوهغوی مجبورشول چې صرف دځان دفاع وکړي اوله خپلوځالواومراکزپه اساني راونه وځي ، سرچينه وايي ،طالبانود تيرکال په ړومبيوڅلورومياشتوکې يونيم زر حملي ترسره کړي وي ، يعني دتيرکال په نسبت دطالبانوسړنی وړ تيااوبريدونه دوه برابره وه.
دالعالم په نامه ويبپاڼه دنړيوالو خبري اژانسونو له قوله وايي : ۲۰۱۳ کال دامريکايانولپاره له مالي زيانونو څخه ډک وو ، چې تنها دنورخم په سرحدي ښارګوټي کې دطالبانود۲ کارنده تکتيکي حملوپه ترسره کيداسره دامريکايانو ۲ سوه ټانګونه له منځه ولاړل اوهغه ستري لوژستيکي اوجنګي زخيري چې امريکايانوله افغانستان څخه انتقالول غوښتل لوليه وګرځولې ، چې دسرسري تخمين له مخې په دواړوپيښوکې امريکايانو نه پنځه سوه ميلونه ډالر زيان تنها په همدې يوې نقطه کې واوښت .
دافغانستان داسلامي امارت ويندوی ښاغلی ذبيح الله مجاهدچې له څرک سره يې په مرکه کې د۲۰۱۳ کال مهموپيښوته اشاره کوله ويلي : دښمن بايد دمجاهدينو پوځي وړ تيااوبرلاسي لدې ټکي معلومه او تسليم کړي چې دوی ۲۰۱۳ کال دخپل ځان لپاره ټاکونکی بللی وو او فکريې کاوه چې دخپل جنګي ماشين په ورستی زورازمايی او داجيري اردو په مخامخ جنګي تمرين سره به امريکايان خپلو ولسونو ته اعلان کړي چې دادی دافغانستان جګړه دوی وګټله اومجاهدين مو د۲۰۱۴ کال له مقاومت اومقابلي څخه وغورځول ؛ خوالله تعالی دغليم دغه ټولې حربي اوپلانونه لکه دنوروکلونوپه څيرشنډ اوله رسوايي سره مخ کړل ، نه يواځې داچې مجاهدينو خپل جهادي سنګرونه وساتل ، بلکي دډول ډول تکتيکونوپه کارولوپې په پلازمينه کابل کې دامريکااوناټو په مهمو اوستراتيژيکو اهدافو ګڼ بريدونه ترسره کړل ، دهيواد هره سيمه اوځمکه يې ديرغلګرواوددوی دګوډاګيانولپاره سره تبی وګرځوله اوان تردې دپراخو ځپونکومعر کولمن يې دبدخشان هسکو غرونو ته ورسوله اوهلته يې هم دښمن ته دسرپه کاسه کې اوبه ورکړي
دکتونکو په اندپه ۲۰۱۳ کال کې که له يوې خوا داسلامي امارت جهادي اوپوځي ځواک په ګوته شو اودامريکا، ناټواوداخلي اجيرانو جنګي ستراتيژياني يوپه بل پسي نابودي اوبې نتيجي وګرځيدې، په سياسي ميدان کې هم لويه لاسته راوړنه داوه چې په قطر کې داسلامي امارت په نامه سياسي دفترپرانيستل شو اوسپين بيرغ ورپيده ؛ داچې مکاردښمن اومخالف لوري په خپلوژمنوپښنه کيښوده اوخپله دغداری څيره يې ښکاره کړه ، داهيڅکله داسلامي امارت په سياسي پرمختګ اوبريا باندې سيوری نشي اچولی !

له لوی اومتعال رب څخه تمنالرو چې نورزمونږ له تاريخي اومسلمان ټاټوبي څخه داشغالګرو کرغيړنه لمن ټوله ، شيطاني طرحي يې نابودي او ۲۰۱۴ کال په داسې ډول رادبره شي چې دامريکا، ناټو اوهر ګبروترسا لښکري زمونږ له هيوادڅخه تښتيدلی وي اوافغانان دامن اوسوکالی په فضاکې دارام ژوندنيکمرغه شيبې ولري ، په همدې هيله !

# دجدي شپږمه دامریکایانو
# لپاره دعبرت مهم ټکي لري !

عبید تنویر .........................................

د۱۳۵۷کال دثورد۷ کمونیستي کودتاورسته دپخواني شوروي سرتمبه رهبرانوفکرکړی وو چې دکابل ګوډاګی رژیم نور ددې جوګه شوی چې دشوروي منافع اوګټي خوندي کړي ، خودافغانانودسرتاسري مقاومت اوقیامونوپه ترڅ کې دروسانودغه خوشباوریانی اواټکلونه په رومبیوشپواو ورځوکې له ستونزواوکړاوونوسره مخ شول ، تردې چې دثورله۷ نیټي څخه دجدي ترشپږمي پوري دافغانستان په سطحه۷۰ لوی ولسي قیامومونه ترسره شول.

دکابل کمونیستي رژیم چې دافغانانوله قیامونوڅخه په ویره اوبیم کې شول نود۱۳۵۷کال دلیندی په ۱۴ نیټه یې مسکوته دیوه لوړپوړي پلاوي په ورتګ له بریژنیف سره د۱۵مادوپه لاسلیکولو دیته زمینه برابره کړه چې شورویان په افغانستان پوځي اومستقیم یرغل راوړي

روسانودکمونیستي رژیم دتقویې اودادرودتجهیزپه بهانه د۱۳۵۸کال دزمري په میاشت کې سوونه الوتکي ، ټانګونه دکندهاراوبګرام په هوایي ډګرونوکې مستقروګرځول ، دهمدې کال دمیزان په میاشت کې، دافغانستان دستراتیژیک موقعیت دارزولواودمهموپوځي سیمودنقشه کولواومعلوموپه منظور۲۰ تنوروسي جنرالانو دافغانستان دوره وکړه.



دلیندی په میاشت کې ۱۵۰۰ خاصوروسي قواوودبګرام اوکابل په هوایي ډګرونوکې واړول، دجدي په ۳ نیټه روسانواعلان وکړچې له کابل اوتاشکند سره یې ددوستی په نوم هوایي پل افتتاح کړ، خلاصه داچې دجدي تر۷ نیټي پوري دپنځوزروپه شاوخواکې روسي عسکرافغانستان ته داخل اوپه بیلابیلوځایونوکې ځای پرځای شوي وو.

دشورویانوپورته نیرنګونه ټول دجدي دشپږمي ورځي یعني ح پرافغانستان دمستقیم ستریرغل دترسره کولوپه موخه مقدماتي هڅي وي.

دجدي په شپږمه ورځ لږترلږه ۲۵ زره شوروي لښکري دځمکي اوهواله لاري چې په درنواوسپکووسلوسنبالي وي دداخلي اجیرانوپه مرسته یې دافغانستان په حریم اوحرمت

په داسې حال کې يرغل وکړچې مظلوم افغانان د ښې په خوا ره خوب ويده وو او ببرک کارمل د تاشکند له راديو څخه د بل کمونيستي غلام (امين) د رژيم د نسکوريدو او وژل کېدو په اعلان سره دافغانستان په خاوره د شوروي د مستقيمي مداخلې د خبر ترڅنګ د سره کمون له يرغل څخه بشپړملاتړ وښود او بيا په ټانګ سپور کابل تخت ته راوستل شو.

روسي لښکرو د ۱۳۲۷ کال ترژمي پوري دافغان مسلمان ولس په وړاندې خپل هرډول وحشت او بربريت اوزوازمايي سرته ورسوله، بالاخره دافغان مجاهد ولس د تاريخي مقاومت او سپيڅلي جهاد په وړاندې يې دخپلو ۱۵ زره عسکرو په وژل کيدو او نورو سترو تباهيو په ليدلو سره مجبور شول چې له افغانستان څخه خپلې اشغالګرې قواوې وباسي او دافغانستان جګړه د شوروي اتحاد ستره اشتباه وبولي.

## دافغان جهاد نقش د شوروي اتحاد په نړيدو کې:

شاوخوا ۲۲ کاله وړاندې، د دسامبر په ۲۱ نيټه په کال ۱۹۹۱ کې د پخواني شوروي اتحاد يو درڅن غړو دقزاقستان په پلازمينه الماتا کې د شوروري اتحاد مرګ او سقوط په داسې حال کې اعلان کړ چې لا ۷۰ کلونو ته نه ورسيدلی.

پخواني شوروي اتحاد چې په کال ۱۹۲۲ د دسامبر په ۳۰ ورځ وزيګيد ۶۹ کاله يې دوام وموند او دمحوې او نابودی شيبې يې هلته راورسيدې چې دافغانستان اشغال ورته نور د سرپه کاسه کې اوبه ورکړې وي، په ميلونو وګړو دکريملين مانۍ محاصره کړه او په کلکه يې ترينه وغوښتل چې نور بايد دکمونيزم پليده او خونخواره ايډيالوژي او امپراطوري ته د پای ټکی کيښودل شي، هماغه وو چې پخواني شوروي ونړی او ځای يې تريو ځوکلونو پوري (مشترک المنافع) هيوادونو ونيو، چې بيا هغه اشتراک هم له منځه ولاړ او د شوروي له ګيډې راوتلي هيوادونه هريو په خپله مخه روان شول.

دافغانستان له اشغال څخه د شورويانو په ګټو نورو موخو سربيره دوه مهم هدفونه لرل چې يو دافغانستان په سترو زيرمو او قيمتي شتمنيو خيټه اچول او بل ديوه کمونيستي رژيم حمايه او دهمدغې پليدې نظريې خورول وو، خو الله تعالی دوی په دواړو اهدافو کې دافغان ولس د ستري قرباني او مقاومت په پايله کې ناکام او شرمنده وګرځول

## په افغانستان کې د شوروي اتحاد د سقوط عوامل څه وو؟

يوله مهمو دلايلو څخه چې شوروي يې په ګونډو کړ، دافغان مسلمان ولس تاريخي او بيساري جهاد او قرباني وه، که چيري دغه جهاد او مبارزه نه وي، نړی د سره استعمار له مقابلې عاجزه وه، ځکه د شوروي له سقوط څخه لس کاله وړاندې شورويانو په ډير جرأت اروپا ته هستوي توغندي مخامخ کړي وو او هره لحظه يې ټوله اروپا او امريکا په دې تهديدوله چې که دوی مخالف حرکت وکړي نو خامخا به يې هدف ګرځوي؛ خو افغانانو ميړانې او مقاومت په ټوله دنيا کې دا ساه پوه کړه چې د شوروي په وړاندې د مخالفت اواز پورته کيدلای شي.

بل علت يې دکمونيستي قيادت په سطحه تغيراو دګوربا چوپ منځته راتلل وو، چې دغه تغير هم بيرته دافغانستان د جهاد اغيزاو اثرته ورګرځي، بل لامل يې د شوروي اتحاد وزن اولوی حجم وو چې نورپه اقتصادي او سياسي لحاظ ددې جوګه نه وو چې په يوه فرموله اوبرنامه هغه اداره او تمويل کړي.

دجنګونو تل داعادت وي چې دخپلو جنګياليو له وجې يادترقی او غښتلتيا څوکې ته رسيږي او يا يې هم دنابودی او سقوط لوی باعث همدغه اردو ګرځي، دشوروي اتحاد لښکري هم چې له افغانستان څخه بيرته وګرځيدي، نه داچې کومه روحيه او ويارېې له ځان سره يوړ، بلکې ټولو په يوه خوله جګړه غندله، دافغانستان دجنګ ترخې اوبدې خاطرې يې بيانولې او دلويو مظاهرو په ترځ کې يې له شوروي پارلمان څخه غوښتل چې نور له ښکيلاکې عزايمو لاس واخلي او ولسونه سولې او ارامۍ ته پريږدي.

دشوروي اتحاد لښکري که څه هم له افغانستان څخه په شاشوي خویومخ یې استعماري سیاست ته دپای ټکی کېښنود ، بلکې دکابل ملحد او کمونیستي رژیم ته یې ۴ ملیارده مختلفي وسلي او جنګي وسایط پرېښودل چې دافغانانو په مقابل کې وجنګیږي او دمره شوروي یادبود تازه وساتي ، خو په هغه سربیره هم الله تعالی دافغانانو داعیه اوبرحق جهاد کامیابه کړه او دکابل کمونیستي رژیم یې راپرېویست.

## دروسانو او امریکایانو دیرغل توپیر !

اوس پوښتنه داده چې یولک اولس زره شوروي لښکرو هم دلس کلن اشغال په ترڅ کې له یو میلون څخه ډېرافغانان ووژل او په میلونو یې شکنجه او دخپلو کوډاګیانو په مرسته تري تم کړل ، امریکایان هم د۴۰ نورو هیوادونو په اشر ۱۳ کاله کیږي چې دافغانانو دقتلولو او کړولو لپاره یې چاره راویستلي او هرهغه څوک چې امریکایی استعمارته غاړه نه ږدي له تیغه تیروي

. ځیني امریکایی لوحه خلک داپروپاګنده پرمخ بیایی چې دروسانو او امریکایی یرغل ترمنځ فرق دادی چې روسانو دملګرو ملتونو دامنیت شوراله پریکړې پرته افغانستان اشغال کړی وو او امریکایان دغه هوه کړه له ځان سره لري ؛ خوزما په فکر دغه استدلال ځکه باطل او ناترسه دی ،چې روسانو هم افغانان وژل او امریکایان یې هم وژني ، په دومره توپیرچې دروسانو وسلي دامریکایانو دوسلو په نسبت ورسته پاتي وي یاني دامریکایانو قاتله ټکنالوجي افغانان په خپل پرمختللي ماشین ژر هدف ګرځولی اوله منځه وړلی شي او په څنګ کې ورسره مکاره میډیا هم اوږه پراوږه خپل کردارادا کوي او پرده پري غوړوي اوښایي بل توپیریې داوي چې روسانو په افغانستان مستقیم یرغل راوړی وو او له شکست ورسته وتښتیدل ، خو امریکایانو په مخامخ یرغل سربیره ، فرهنګي او فکري هجوم هم راوړی او ترټولو زهرجنه نسخه یې داهم له ځان سره تیاره راوړي چې که پوه شول نوریې په افغانستان کې پښې نه ټینګیږي نودمتحد افغانستان په ټوټه کولو به هم صرفه نکوي او خدای مکړه جنوب او شمال به سره ویشي ! !

مطلب داچې روسان او امریکایان دواړه دافغانانو قسم خوړلي غلیمان وو ، روسانو داشرارو په نوم وژل او امریکایان یې دترهګرو په نوم ؛ خو الله تعالی شوروي دافغانانو په میړانې دنابودی کندي ته وروغورځاوه او رهبرانو یې اعتراف هم وکړ چې دافغانستان اشغال دشوروي دنسکوریدو سبب وګرځید ، ولي امریکایان لاهم په دې فکرکې دي چې دشوروي په برخلیک به نه اخته کیږي ، ځکه چې مجهزه تکنالوجی لري اوله بل لوري دامنیتي تړون په لاسلیک سره به دافغان ولس له ګوزار څخه په امان کې پاتې شي.

دامریکایانو دغه سوچ ډېربې ځایه او لوی حماقت دی ، ځکه افغان ولس اوس په دې پوهیدلی چې امریکایان دافغانانو له غمه دلته نه پاتي کیږي ، بلکې نوري استعماري موخي او ستري دسیسي لري چې مخامخ به پکې افغان ولس راښکیلوي او دخپلو نړیوالو او سیمه ییزو سیالیو او کشمکشونو قرباني به یې ګرځوي ، له بل لوري دسیمي او ګاونډ هیوادونه هم په هیڅ بیه دیته ندی تیارچې دیوې شیبې لپاره هم په دې سیمه کې امریکایي اډې او ځالي ووینې ، نو پایله داشوه چې امریکایانو دخپل ځان دمحوې لپاره افغانان ، سیمه او ګاونډ په لوی لاس یوه میدان ته درول غواړي او هغوی مجبوروی چې دامریکا داستعماري موخو په مخ کې ګډه هماهنګي ولري .

امریکایان که لږ شعور اوفهم هم ولري نو اول دي دجدي دشپږمې له یرغل او انجام څخه ددرس هغه عمده ټکي ښه په دقت مطالعه کړي چې ولې سورکمون له خپلې ټولې امپراطوری سره دافغان ولس په مقابل کې تاریخي شکست ولید او هغه تالیخي رژیم چې دکابل له اوسني رژیم څخه په څو چنده مجهزاو دجنګیالی اردو څښتن وو بالاخره راونړید او دابد لپاره دفن شو !؟

# امریکایی که تصور به زانو زدنش نه میشد




استکبار جهانی (امریکا) در مدت یک قرن از حالت عادی به طرف تکبر و طلب بالادستی به سایر ملل جهان تلاشهای مذبوحانه یی داشته است، ایالات متحده امریکا میخواست در جهان به گونهء ابرقدرت یکتاز و همه کاره عرض اندام نماید، زمانیکه کمونیزم در مقابل کاپیتالیزم ایستاد و موانع بی حدی را در سر راه کسترش سرمایه داری ایجاد نمود، در آن زمان امریکا بسیار مشغول مقابله با اتحاد جماهیر شوروی وقت بود، که هم در عرصه اقتصاد وهم در بخش نظامی، منافع کشورهای غرب به خصوص امریکا را تهدید میکرد، ولی وقتیکه اتحادجماهیر شوروی سابق به دست افغانها در مدت چهارده سال جهاد و مبارزه نظامی از پا درآمد، امریکا نَفَس راحت کشید وخود را در جهان، نیروی مقدر تر از همه کشورها تلقی کرد، تا یک حد نیرومندی اقتصادی و نظامی امریکا واقعیت داشت، تمام سرمایه دنیا در کنترول امریکا قرار گرفت، سلطه به بازار جهانی تجارت کاملا در گرو دالر امریکایی درآمد و تا کنون هم تمام اسعار جهان را تاحدی زیر کنترول دارد.

بخت امریکا ان زمان نگونسار گشت که اقدام به تجاوز علیه افغانستان نمود، جنگ افغانستان مثل یک ناسور خود کرده، هیولای ایالات متحده را رسوا ساخت و نیروه همه جانبهء آن کشور را زیر سوال بورد، امریکای که تصور به زانو زدنش نه میشد الحمدلله اکنون به زانو درآمده و زخمهای برداشته اش را می لیسد.

حینی که امریکا در زمان بوش اقدام به تجاوز علیه ملت مظلوم وبیچاره افغان نمود، نظام و ارزش های مردم افغانستان را مورد تاخت وتاز نظامی قرار داد، ملت دلیر و سر بلند افغان روی مکلفیت دینی و وجدانی خود، در مقابل خواهشات ذلت بار امریکا سر خم نه کرد و علیه این ابر قدرت مصنوعی قرن بیست ویک دست به شمشیر زد و به مبارزه پرداخت، در جریان دوازده سال مبارزه علیه تجاوز و اشغال کشور، در ضمن درد ها وآلامی که مردم ما دیده اند، امریکا نیز از آن بی بهره نه ماند، به هزارها سرباز خود را در جنگ بی هدف از دست داد، به دها هزار دیگری را مجروح، معیوب و دوچار مشکلات روانی ساخت که مادام عمر درد سر و بار دوش جامعه امریکایی خواهد بود.

از سوی دیگر امریکا حیثیت جهانی اش را کاملا باخت که به وسیله آن ملتهای جهان و کشور های زیر استعمار را می چوشید، اکنون امریکا به سطح بین المللی آن کشور باقی نه مانده که کشورها را تهدید به حمله نماید ،مدت قبل ما شاهد نا راحتی و بی چارگی کانگرس و ثنای امریکا در حینی تهدید امریکا علیه رژیم بشار اسد در سوریه بودیم .

زمانی که رئیس جمهور و دستگاه دولتی امریکا حرف از حمله بالای سوریه میزد، افراد پارلمان و ثنای امریکا مخالفت جدی می نمودند و روی مشکلات داخلی امریکا که از لحاظ اقتصادی و اجتماعی جامعه امریکایی را به سرسامی دوچار نموده، پا از جنگ علیه سوریه میکشیدند.

به اتخاذ سیاست ایالات متحده که علیه کشور سوریه گرفته شد، تمام ملل جهان دانستند که امریکای که جنگ را به پول میخرید، اکنون چه سان از جنگ ابراز پیشیمانی میکند و فرار را بر قرار ترجیح میدهد، این سیاست دل وناد ل بودن، اگر از یک سو پیام خاطر آرامی به ملتها و کشورها از تهدید امریکا داشت، از سوی هم ناتوانی، آبرو ریزی، ضعف اقتصادی و اراده شکست خورده امریکا را با بسیار وضاحت به نمایش گذاشت.

# د صبغت الله مجددي

قاري محمد شيباني

# په قاموس کې د هجرت نوی قسم

په کوم هیواد چې د کفر غلبه شي، د یو مسلمان دین او ایمان خوندي نه وي، د الله او رسول په احکاماتو د عمل له کبله پرې تیری او تجاوز کیږي، نو په هغه مسلمان داسې ځای ته هجرت لازم دی، چې دین یې هلته خوندي وي.

په افغانستان کې د ستراتیژیک تړون د لاس لیک لپاره چې کومه مشورتي جرګه راغوښتل شوې وه، هغه په وروستي درشل کې له سختو ناندریو سره مخ شوه. له توقع سره سم د غونډې ګډون کونکو چې اکثریت یې مخکې له مخکې اخستل شوي وو، پریکړه لیک په ډیره آسانی سره امضاء کړو، ولې کله چې د دوی جمهور رئیس کرزي ته وړاندې شو، نو هغه په نابره توګه د توقع برخلاف منفي غبرګون په ډاګه کړو، د پریکړه لیک امضاء یې آینده جمهور رئیس ته پرېښوده او ویې ویل چې تر هغه به پریکړه لیک امضاء نشي، تر څو امریکایان موږ ته د امن د راوستو ډاډ رانکړي، په خپلو ژمنو کې د وفا وعده رانکړي او د افغانانو وژنه بنده نکړي، هغه زیاته کړه چې امریکایانو له موږ سره څو څو ځلې درغلی کړې دي، وعده یې د یو څه کړې، تر سره کړې یې بله څه دي، نو ځکه داري ځل موږ ورته ویښ یو، تر څو چې یې پوره ډاډ او باور نه وي راکړی د دوی په وعدو به ونه غولیږو، نو ځکه به له دوی سره چنې وهو.

د جرګې مشر حضرت صبغت الله مجددي په هغه مهال چې کرزي د توقع خلاف د پرېکړې د امضاء کولو څخه ډډه وکړه، نو حضرت صیب ورته داسې وویل: تا جایکه ما تجربه داریم، دانش داریم، علم و شریعت و قانون را میفهمیم، ان شاء الله که این قرارداد بخیر ما است. اګر از هر مادهٔ قرارداد در آینده دوستهای ما امریکا مخالفت کردند، باز جوابګویش ما ملت خواهم بود. دیګر ما خواهش میکنم که این قرارداد بزودي امضاء شود، اګر امضاء نشود ما بشما وعده میدهم، که ما یک آدم ګناهګار و خدمتګار این ملت، که سي، چهل سال یا پنجاه سال در سیاست هستم، من استعفی میکنم از همه چیز، و ما هجرت میکنم، ازین وطن میبرایم و به یک وطن دیګر میرم.

ښاغلي مجددي په خپلو خبرو کې د هجرت نوی نادر قسم رامنځته کړو، ځکه هجرت د کفر له تسلط نه بل ځای ته تللو ته ویل کیږي او مجددي صاحب ځکه هجرت کوي، چې یو نړیوال عفریت امریکا ته اډې نه ورکول کیږي، د هغوی تسلط نه رامنځته کیږي، نوموړی وایې که چیرته امریکایي عفریت ته په هیواد کې اډې ورکړل شوې، نو زه دلته اوسیدا ته تیار یم، کنه بیا زه مجبور یم له دې هیواده هجرت وکړم، چې دا د اسلام په تاریخ کې عجیب ترین او غریب ترین هجرت دی. همداسې نوموړي امریکایان خپل دوستان یاد کړو، خو الله تعالی فرمایي چې یهودیان او عیسایان ستاسو دوستان نشي کیدای تر څو تاسو د دوی دین قبول نکړئ، نه پوهیږم چې امریکایان مسلمان شوي او که نوموړي د هغوی اطاعت قبول کړی دی. نوموړي په

خپلو خبرو کې دا هم وویل چې که چېرته امریکایان له خپلو وعدو نه په شاه شول، نو دا ملت به یې ځواب وایې، داسي یې وته ویل چې زه به د دوی له ملګري او دوستي لاس په سر شم او د دوی په خلاف به جهاد اعلان کړم، ملت خو هسي هم له ډېر پخوا نه د طاغوتي ځواکونو په خلاف په جهاد بوخت دی.

ویل کیږي چې له جرګې څخه مخکې له نوموړي سره څو ځلي امریکایي سفیر لیدني کتنې کړې دي، نوموړي له نغدو پیسو څخه علاوه په آینده حکومت کې د ده زوی ته د وزارت ورکولو وعده هم کړې ده، نو ځکه نوموړي په عام محضر کې په ډېره بې شرمانه توګه د پرېکړې د امضاء غوښتنه کوله، نوموړي ټول ډپلوماتیک نورمونه تر پښو لاندي کړو، له خپل جمهور رئیس نه یې د ټولې نړۍ په مخکې داسي غوښتنه تر سره کړه، لکه څوک چې یو چپړاسي ته امر کوي، پکار خو دا وه، چې خپل منځ کې یې څه د رتبې حثیت مراعات کړی وای، د ټولي جرګې او ټولې نړۍ د میډیا په مخکې نه بلکې په یوه پټه کوټه کې یې دا ناندرۍ وهلې وای. خپل حثیت خو یې د بازار د دلالانو په څیر نه وای مجروح کړی.

همداسي ښاغلي کرزي هم په عام محضر کی د شیعه ګانو په خاطر خپله خطبه نیمګړي وویله، هغه الحمد لله رب العلمین و الصلوة و السلام علی خاتم النبین وویل او له هغه وروسته و علی آله واصحابه اجمعین چې د اهل سنة والجماعة په نزد د خطبې یو جز لا ینفک دی، د سني او شیعه توپیر پرې کیږي، هغه قصداً د شیعه ګانو لپاره وونه ویل.

د ښاغلي مجددي په اړوند د طالبانو د وخت یو لوړپوړي چارواکې داسي ویلي وو: حضرت صاحب خپله ښه سړی ده، خو دا خبره بلچا په خوله کې ورکړي ده. رښتیا هم ښاغلی مجددي چې کله هم خبري کړي دي داسي ښکاري چې بلچا پیچکاري کړی وي، الفاظ د بل وي خوله د ده.

## د سګرټو زیانونه او د روږدو پایلې

د روغتیا نړیوال سازمان (WHO) World Health Organization د څرګندونو له مخې په هرو ۸ ثانیو کې یو انسان خپل ژوند د نشه یي توکو له امله د لاسه ورکوي او دا یې هم په ډاګه کړې، چې تقریباً شپږ میلیون وګړي هر کال د سګرټو د څکولو له کبله خپل ژوند له لاسه ورکوي او د نیم میلیون هغه نورو کسانو روغتیایي حالت خرابیږي، چې د سګرټو لوګي راکاږي.

که دا لړۍ همداسې روانه وي؛ نو تر ۲۰۳۰ کلونو پورې به دا شمېر اته میلیونو ته ورسیږي. دا څېړنه ښیي، چې له سګرټو ډېر اغېزمن شوي کسان به د وروسته پاتې هېوادونو وګړي وي.

ویل کیږي چې په شلمه میلادي پېړۍ کې په نړېواله کچه سل میلیون انسانانو د هغه ناروغیو له امله چې سګرټ زېږوونکي خپل ژوندونه له لاسه ورکړي دي.

دا څېړنه ښيې، چې سګرټ څکوونکي د هغو انسانانو په پرتله ۲۰ – ۲۵ کاله مخکې مري، چې په سګرټو روږدي نه دي او یا ترې لیري دي.

### د سګرټو زیانونه :

په یو وروسته پاتې هېواد کې د سګرټ څکول د ځوانانو له پاره د ویاړ وړ کار ښکاري او فکر کوي، چې په دې کار ښه ښکاري. په دې وروستیو کلونو کې افغان ځوانان او مشران د ګلانو چلم یا قیلون په څکولو روږدي شوي یا ځانګړې خونې لري او یا هم په همدې موخه جوړو شویو ماڼیو ته ورځي او چلم څکوي. په دې خونو او ماڼیو کې د قیلون له پاره ځانګړي میوه یې تنباکو، چې بیلابیل بویونه، رنګ او مزه لري وړاندې کیږي.

څېړنې ښیې چې د قیلون دود لس ځله له سګرټو زیانمن دی.

د دوخانیاتو زیانونه یوازې دا نه دي، چې د زړه او سږو سرطاني ناروغۍ پیدا کوي. بلکې ډېرې نورې خرابې پایلې هم لري لکه: د وېښتانو تویدل، د پوستکي خرابوالی، د پوستکي سرطان، د غاښونو خرابوالی، د هډوکو خرابوالی، د معدې زخم، د ګوتو د رنګ بدلون، د رحم سرطان، د جنسي سلولونو بېوسه کېدل، د ژبې سرطان، د خولې سرطان او ډېر نور رنځونه.

د پوهنې د کچې په لوړتیا او د خبرتیاوو په خپرولو د سګرټو کارول په پرمختللو هېوادونو کې ټیټ شوی او په ډېرو نورو هېوادونو کې د کښته کېدو پړاوونه وهي؛ خو په هغو هېوادونو کې، چې ډېر وروسته پاتې یا د پرمختګ په حال کې دي، د سګرټو کارول ډېر دي، چې علت یې ناپوهې او لږ عاید دی.

څوک چې سګرټ پرېږدي، د هغو وګړیو سطحې ته به ژر ورسیږي، چې سګرټ نه څکوي؛ په دې شرط چې د ځوانۍ په وخت کې سګرټ څکول پرېښودل شي.

# هو! امريکا ته وګوره
# ته افغانستان کې تېر څوڼ مهم دی

رحيمي

څو ورځې وړاندې دامريکا يې لاسپوڅې رژيم مشر کرزي په اړګ کې له ژورنالستانو اوخبريالانو سره په خبروکې څوځله تکراراً وويل: امريکا له افغانستانه وتونکې نه ده!! اود ډير وخت لپاره په سيمه کې سترا تيژکې موخې لري!! هغه دا هم وويل: چې امريکا ته زه مهم نه يم !امريکا ته افغانستان مهم دی!!

دکرزي له خولې داخبرې را وتل له دې پلوه اهميت لري، چې نوموړی په دې سربيره چې دافغاني الاصل امريکايانو دسر سړی دی ، هغه دامريکا دپټو رازونو او ارادو نه هم تر بل هرچا ښه په زير اوزور خبردی !!

دډيرو لپاره دښاغلي پورته څرګندونې له حيرنتيا ډکې دي ،ولې دهغوئ په اند نوموړی دومره نمک ... نه دی چې دخپل محسن اوبادار د ښيګڼو هيرولو وروسته اوس دهغه د پټو رازونو پرده پورته کوي ،بلکې برعکس محسن رسره جفا کړي ، هغه ورسره د نورو ښيګڼو په لوظ او وعده ولاړنه دی، ددې روي په حسولو چې(زه نور دامريکا لپاره مهم اومحترم نه يم ! )کېداي شي وربانديې دلا شعوريت څپې ختلو پر مهال يې له خولې پورته خبرې وتې وي ...

خير چې هرڅه وي !مونږ راځو ديته چې آخر هغه اوږد مهالي ستراتيژکې موخې کومې دي چې ښکېلاک يې په سيمه اومنطقه کې لري ؟دسياسي کارپوهانو له نظره امريکايانو ته افغانستان له دې پلوه هم خورا زيات ازښت لري ، چې ددغه هېواد ټولې معدني زيرمې پخپل حال تراوسه خوندي پاته دي ، وروستيو څېړنو اوپلټنو په نتيجه کې امريکا داسي معلومات ترلاسه کړي، چې افغانستان د معدني زيرمو له پلوه دنړۍ په سطحه يو لوی غني هېواد دی، حتی ځينې يې زيرمې نړۍ کې بې ساري اوبې جوړې دي ، امريکا هوډلري ترهغه افغانستان کې خپل پوځي اشغال وغځوي ،څو يې دافغانستان طبعي زيرمي چور اوتالان کړي نه وي ، بل امريکا نه غواړي په آسانه له ځان وروسته د افغانستان په څېر دطبعي زيرمو له درکه دغني هېواد دچارو واګې طالبانو اويا بل هغه چا ته په لاس ورشي چې هغه داسلامي نظام دنفاذ ايډيا ولري ،ولې هغوئ ته يې په لاسو دافغانستان ورتلل به دامريکا د شومو استعماري اهدافو په وړاندې مسلمانان به تقويه کړي ، امريکا له دې مرحلې راتلو مخکې مخکې غواړي د افغانستان زيرمې چور اوتالان کړي ، هم دا اوس دهېواد په مختلفو برخو کې په دغو زيرمو چور اوتالان ګډ دی ، سيميز زور واکان لګيا دي په غير فني توګه دافغان ملت دغه ملي شتمنۍ استخراجوي اوپه بدل کې يې پريمانه پيسي پخپلو جيبونو کې اچوي بل امريکا هوډلري دافغاني ټولنې دننه خپله شيطاني مفکوره وشيندي ، خپل ناولی تهذيب او بې

حیا کلتور خپور کړي څو په دې هغه موانع اوخنډونه له منځه یوسي چې دامریکا دپراختیا غوښتنې عزایم شنډوي.

له دې څخه علاوه امریکا افغانستان کې دخپل پوځي موجودیت څخه په ګټه ارادہ لري دسیمې اومنطقې هېوادونه دخپل ښار اوفشارونو ترپوښښ لاندې په را وستو دهغوئ طبعي زیرمې هم ولوټي، مثلاً: غواړي دمرکزي آسیا په طبعي زیرموکې دځان لپاره اجاره او ونډه ومومي، پام کې لري، بیرون ته دمرکزي اسیا زیرمو دلیږد او صادرولو بهیر دافغانستان له جغرافیوي موقعیت نه په ګټه تعقیب او وڅاري، هغه چا ته ترې داستفادې چانس ورنکړي چې دامریکا خوښ نه وي، ددې ټولو سربیره امریکا ترهرڅه زیاته لیوالتیا او علاقمندي له دې سره لري چې دافغانستان دجغرافیوي محل وقوع نه په ناوړه ګټه اخیستنه دافغانستان ګاونډي هېواد چین ته ګواښونه اوننګونې پیدا کړي، دا دامریکا ترټولو لوړ عمده هدف او لویه ستراتیژکه موخه ده، امریکا ته په هیڅ صورت دچین اوسنۍ اقتصادي او پوځي پرمختیاوې دزغم وړنه دي، دکتونکو په وینا: دچین او امریکا ترمنځ روان کشمکش خورا جدي دی، ولې دکارپوهانو په تخمین که چین هم داسې خپل پرمختګ ته دوام ورکړ، کوم چې دیوې لسیزې راهیسې دوام لري، تر ۲۰۲۰ زکال پورې به هغه د یوه ستر نړیوال ځواک په حیث ځان څرګند کړي، امریکا لا په افغانستان یرغل نه و کړی، دچین په وړاندې د ستونزو په ایجادولو لګیا وه، اوس امریکا دچین په ګاونډ کې آن دهغه په شا رګ لاس ایښی، غواړي وربانديې یو داسې حالت تحمیل کړي چې په سبب یې دهغه دتیزې ترقۍ او پرمختیا وو ډک یون ټکان وخوري.

همدا وجه ده چې امریکا دآسیا بحرالکاهل اصطلاح په کارولو خپل ۲۰ سلنه سمندري ځواک په سیمه کې راټول کړی دی او ددې لپاره داجواز وړاندې کوي چې دا اجتماع دشمالي کوریا لخوا د احتمالي برید په خلاف ده، خو دچین په ګډون هرڅوک پوهیږي چې په سیمه کې دامریکا یې ځواکونو راټولیدل دشمالي کوریا پرضد نه، بلکې دچین پرضد دي، له دې څخه علاوه امریکا دچین په شاوخوا کې له ګردو پرتو هېوادونو سره دفاعي تړونونه لاسلیک کړي، او هلته یې خپل سمندري ځواکونه له وړاندې نه ځای پرځای کړیدي، هم یې خپلې سمندري بیړۍ دمنطقې په مختلفو هېوادو کې ود رولې، دچین په ټولو ګاونډیو هېوادو کې خپل ځواکونه زیاتول غواړي مثلاً: امریکا په سنګاپور کې دخپلو ځواکونو شمېر سیواه کړی، پیلپین سره یې تازه دفاعي تړون لاسلیک کړ، هلته یې هم خپل سمندري ځواک ځای پرځای کړ، هم دا راز له انډونیزیا، ملیزیا، برونائي، ویتنام اونورو هېوادونو سره یې ورته دفاعي تړونونه لاسلیک کړي دي، استرلیا کې یې هم نوي پوځي هډه جوړه کړه، جاپان کې له وړاندې پوځي هډه لري، اوس کوښښ کوي چې هلته جنګي توکي او اسباب زیات ورسوي، هم داسې غواړي چې هند هم راضي کړي، څو هغه ورسره دچین په کلابندولو کې ملګرتیا وکړي، حال داچې هند دچین سره په یوشمېر سیمو جنجالونه هم لري او له دې وجې یې لا وخت په سر دچین پر خلاف له ویتنام اومنګولیا سره دفاعي تړونونه لاسلیک کړي دي، اوپکې یې خپل "براهمون "نوم مزایل نصب کړي دهغو څوکې یې دچین لورته ګرځولي.

په داسې حالت کې حتمي ده چې چین به هم دخپلې دفاع لپاره لازم تدابیر په پام کې نیولي وي، البته چین کوښښ کوي چې دامریکا سره مخامخ ټکر رامنځته نکړي، آن تردې چې چین زیاتره وخت دامریکا په ډیرو تحرکاتو سترګې پټوي، څه موده وړاندې چین دخپلې دفاع لپاره دچین هوائي قلمروته دنوتونکو الوتکو پیژندلو په موخه، دخپل فضائي شناخت منطقه( A d I z ) اعلان کړه، له دې اعلانه دچین غرض داو چې ددوئ "ایرډیفنس زون" ته هره ننوتونکي الوتکه د خپل ځان پیژندګلوي رعایت کړي، دسرغړونې په صورت کې به دوئ حق ولري چې دپیژندګلوئ اصل نه رعایتونکې الوتکه وغورځوي.

په دې سره ژر امریکا په خوښت راغله جوبایډن په منډو منډو چین ته لاړ، هلته یې بیجنګ کې دچین ولسمشر "ژي جنګ" ته وویل: چې دوئ ددغه فضایي زون پیژندګلوي اصل نه مني اونه یې رعایتوي، دې پسې متصل امریکا خپله یوه بې ۵۲ الوتکه چې په اتومي وسلو هم سمبال وه د "سینګا" ټاپو ورمه سیمې ته ولیږله، او اعلان یې وکړ، چې امریکا په یاده جزیره کې عملیات وکړل، په مقابل کې یې چین هیڅ غبرګون ونه ښود، سره ددې چې چین کولی شول چې دامریکا بې ۵۲ الوتکه و غورځوي، ولې هغه امریکا چې په ایران او سوریه باندې دمخامخ برید کولو نه خطر احساسوي دچین غوندې پریو ځواکمن هیواد به څنګه دحملې جرئت وکړي، چین چوپتیا غوره کړه، دامریکا وروسته جنوبي کوریا او جاپان هم دغه ټاپو ورمه سیمې ته خپلې الوتکې واستولې، دهغوئ دوارو په وړاندې هم چین له کوم ګام پورته کولو نه ډاډه وکړه یواځې همدومره یې وویل: چې ددوئ لخوا اعلان شوي فضائي زون دنړیوالو اصولو سره برابردی، باید ورته داخلیدونکې الوتکې دوئ ته ځان ورو پیژنې، دکتونکو له نظره دامریکا اوچین ترمنځ دغه کشمکش به تر ۲۰۲۰ زکا پورې دوام وکړي څو چې چین ځان دنړیوال قدرت په حیث څرګندوي، دامریکا له لورې به دچین دځملو لو لپاره روانې هڅې دوام ولري، ددې لپاره امریکا ته افغانستان مهم دی، دافغانستان دخاورې بشپړ واک او اختیار ورته مهم دی، نه کرزی خان او فلانی خان.... افغانستان کې چې امریکا یوځي هدې جوړوي دخپلو ګټولپاره نه دافغانستان ددفاع لپاره، امریکا په دې اړه هیڅ پلان او طرحه نلرې یو اځې دافغانستان جغرافیوي محل وقوع ورته اهمیت لري، دچین دځملو لو لپاره دپاکستان دایل کولو لپاره امریکا ته افغانستان مهم دی، داخبره چې امریکا ته دافغانستان ګټې مهمې دي یا دافغانستان مصالح ورته اهمیت لري هیڅکله رښتیا نه ده...

# دخلیل روح

**همت**

دژوندون مړی پراوړو ګرزم له کوره ځمه
ستا دمالت درقیبانو له پیغوره ځمه

دهیلو مړي پتموم چې اوږې سپکې کړمه
پردیسه اوښکه پر بارخو یم ستا تر لوره ځمه

زړه له دردونوتشوم دغم سندرې وایم
دکابل سندیم له پنجشیره ترلا هوره ځمه

بیا دازر دبت کدې مړي پرماتاوان شول
دخلیل روح یم په خوشاله زړه تراوره ځمه

ښایي دخپل قرن اتل شم دمنصور په قدم
دداروسرته په ګډا او ډک له شوره ځمه

زړه مې له تاسره شي پاتې تش کالبوت روان شم
لکه لمرهرماازیګرځم مګر له زوره ځمه

ستاسو دمینې پوروړی همت هیله لري
په دعاګانوکي مې یادساتئ تر ګوره ځمه

# امانت څه دی ؟

الف لام

## امانت په لغت کې :

دعربو ددې قول مصدر دی چې وايي 'أَمُنَ يَأْمُنُ أَمَانَةً أَيْ صَارَ أَمِينًا ' د(أم ن) له مادې نه اخيستل شوی، هغه چې د زړه په سکون اوډاډ دلالت کوي ، دغه راز ويل کيږي : أَمِنْتُ الرَّجُلَ أَمْنًا وَأَمَنَةً وَأَمَانًا ( سړي ته مې پنا ورکړه ... ' په امن مې کړ '

## په اصطلاح کې :

کفوي وايي: هرهغه څه چې خدای تعالی په بندګانو فرض کړي هغه أمانت دی لکه لمونځ، روژه، زکات اوددينې احکامو ترسره کول، اوترټولو ستريې امانتونه دي په هغوکې ستر امانت بيا درازپټوالی دی ، بل ځای وايي هرهغه څه چې په سړي امانت کيږي لکه مال، ناموس، اورازونه داأمانت دی.

ځوک وايي داپه نفس کې هغه شته خوی ده چې انسان پرې له هغه څه ځان ساتي چې ده ته حق اومناسب نه وي که څه هم ترپښولاندې کولو ته يې داسې شرايط هم برابر وي چې ځوک پرې خبر نشي. بلکې په دې خوی سره هغه څه اداکوي چې پرده لازم وي يا له ده سره دبل حق وي، سره ددې چې که ويې خوري ځوک به پرې خبر هم نشي. دادخلقت له فروعو څخه يوده چې له حق سره دمينې او ايثارلپاره وي اوداد خيانت ضد ده.

## دپيغمبرانو امانت :

امانت درسولانو له وتليو اخلاقو څخه و په شعرآء سورت کې مو الله تعالی له نوح، هود ، صالح، لوط او شعيب عليهم السلام نه خبروي چې له دوی نه هريوه خپل قوم ته ويل: إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ اوزمونږ پيغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم خولاله پيغمبرۍ مخکې او وروسته په خپل قوم کې په امين باندې مشهور و او خلکو به خپل مالونه له ده سره ساتل تردې چې هجرت يې کاوه دخلکو دامانتونو دسپارلو لپاره يې حضرت علی رضی الله عنه خپل وکيل پرېښود.

جبريل عليه السلام دوحی امين و اوپه دې صفت خدای تعالی يادکړی دی فرمايي وَإِنَّهُ لَتَنْزِيلُ رَبِّ الْعَالَمِينَ* نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ* عَلَى قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنْذِرِينَ (الشعراء/ ١٩٢ - ١٩٤).

## دامانت خواوې

هغه خواوې چې امانت ورته شامليږي ډېرې دي چې ځينې دادي:

دين، ناموس، مال، اجسام، ارواح، معارف اوعلوم، سرپرستي، وصيت، ګواهي، قضاء، کتابت، دحديثو رسول، داسرارو اوپيغامونو رسول، سمع ، بصر، او ټول حواس ، هريو يې مناسب تفصيل لري.

## امانت اومکلفيت

امام نیشاپوري وايي: امانت طاعت دی او طاعت مکلفیت او مسؤلیت وي، بیا وایي مکلفیت هغه څه دي چې دطبیعت په خلاف وي او دايي هغه قسم ده چې په اسمانونو، ځمکو او غرونو کې نشته ځکه له اسمانونو تیتېدل نه غوښتل کیږي، له ځمکې پورته کېدل او حرکت نه غوښتل کیږي او له غرونو تګ نه ده مطلوب، دغه راز ملائکې مکلفې دي په تسبیح او تقدیس سره (یوائې همدا په انسان کې دي).

مکلفیت ځکه امانت بلل شوی چې که څوک پکې نیمګړو کړي هغه به جریمه کیږي او چاچې پوره ترسره کړ هغه ته به یې ښه بدله وي، امانت په دې معنی او دغو اجسامو راوړل او له منلو یې انکار ځکه و چې هغه دې ته جوړ نه وو، ځینو مکلفیت تر لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ پورې ځانګړی کړی، امام نیساپوري وايي زما په نزد امانت هغه صلاحیت او استعداد ته ویل کیږي چې دمخلوقاتو هره نوع پرې عادی وي، او حمل یې نه ادا کول دي لکه چې ویل کیږي فُلاَنٌ رَكِبَ عَلَيْهِ الدَّيْنُ نو څوک یې چې په کولو کې خپل ټول قوت صرف کړي نو په رښتیا چې امانت یې ادا او حق یې ترسره کړی وَإِلاَّ فَهُوَ حَامِلٌ لَهَا او له شک پرته چې اسمانونه دخدای تعالی دامر تابع دي هریو تر خپلې نیتې چلیږي، ځمکه په خپل ځای ثابته ده، غرونه په خپل ځای کلک دي، او داسې نور خو انسان نه! ځکه ځینې خلک بلکې اکثره یې اسفل السافلین ته ورګرځېدونکي دي نو چې دامانت حق ادا نکړي او دحیواناتو درجې ته ورټیټ شي ظالم به بلل کیږي ځکه استعداد یې په هغه څه کې وکاراوه چې خلقت یې هغه ته نه و شوی، او جاهل به بلل کیږي ځکه داستعداد دفاسید بدلو پایله یې پته کړه، یا یې علم وکړ خو عمل یې پرې ونکړ نو دعلم نفی ترې وشوه ځکه ثمره یې ورکه کړه، نو ځکه خوویلای شو چې له انسانانو نه مراد آدمیان دي، دجنس په یوه حصه اطلاق کول په ټول جنس دلالت وي.

ډېرو مفسرینو داذکر کړې چې امانت مکلفیت دی، چې وايي: هغه څه چې انسان پرې مکلف شوی دده عظمت او دبار درنښت په ګوته کوي ولې چې دا خو دخدای تعالی په مخلوقاتو کې ترټولو سترو او قوي مخلوقاتو ته وړاندې شو خو هغو یې له منلو انکار وکړ او انسان له خپلې کمزورۍ او خوارځواکۍ سره سره ومنل، ابو حیان وايي: دانسان حال (دخدای تعالی او امروته په منلو او نواهیو ته په غاړه ایښودو کې 'سره له دې چې دمکلفیت د ترسره کولو وړدی) داسې نه و لکه دجماداتو چې په انقیاد پرې صحیح کېده هم او لایق یې هم وو، ابن کثیر رح فرمایي په آیت کریمه کې چې دادومره اقوال راغلل یو له بل ضد نه دي، بلکې ټول یو او دې خبرې ته راګرځي چې مکلفیت او داوامرو او نواهیو منل په خپل شرط سره دي هغه داچې که ترسره یې کړل ثواب به یې وي او که پرې یې ښودل سزا به یې ویني.

## دپیغمبر صلي الله علیه وسلم په ژوندکې دامانت عملي بېلګې:

(ابو سعید خدري رضي الله عنه وايي حضرت علي رضي الله عنه له یمن نه پیغمبر ﷺ ته دزرو یوه ټوټه راولېږله چې په یوه ککړ پوستکي کې نغښتې او له خاورو هم پاکه

نه وه ، دی وایي په څلورو نفرو یې تقسیم کړه عیینه بن بدر، اقرع بن حابس ، زید بن خیل او څلورم کس یا علقمه و او یا عامربن طُفیل. نو له صحابه وو نه یوتن وویل: تردوی خو مونږ ډیرحقداره وو ، داخبره پیغمبر ﷺ ته ورسیده ویې ویل: ایا تاسې په ما باوري نه یاست په داسې حال کې چې زه دهغه چا آمین یم چې په اسمانونوکې دی ، ماته د سهار اوماښام خبرراوړي. دی وایي چې یو سړی ورته پورته شوژوري ځوړنده سترګې وتلې تېره تندۍ او ګڼه ږیره یې وه ویې ویل: له خدایه وویرېږه ای رسول الله ! پیغمبر ﷺ ورته وویل: خوارشې !آیا دځمکې دسرپه خلکو کې ترټولو زیات له خدایه ویرېدونکی زه نه یم ؟ راوي وایي چې سړي مخ واړاوه اوولاړ ، حضرت خالد رضي الله عنه وویل یا رسول الله سریې ونه وهم ؟ پیغمبر ﷺ وویل: نه ! کېدای شي لمونځ به کوي خالد رضي الله عنه وویل ډېرداسې لمونځ کوونکي وي چې په ژبه هغه څه وایي چې په زړه کې یې نه وي ، پیغمبر ﷺ وفرمایل زه دخلکو دزړونو او خېټو په څیرلو مکلف نه یم، دی وایي چې بیا یې هغه ته وکتل په داسې حال کې چې دهغه شاوه، ویې ویل: دا له ضِئضئ څخه دی هغه قوم دی چې دخدای کتاب په لنده ژبه وایي خو ترستوني یې نه تیرېږي له دین څخه داسې وزي لکه غشی له لیندې نه ' اوګومان کوم دایې هم وویل چې: که مې وموندل دثمودیانو په څېر به یې ووژنم )

(له حضرت عائشې رض عنها روایت دی وایي: په پیغمبرﷺ باندې دوه قطري درنې جامې پرتې وې دومره درنې وې چې کله به کېناست خولې به و، په دې وخت کې له شام نه یوه یهودي د 'بز' ټوکر راوړی و ما پیغمبرﷺ ته وویل که یوڅوک دې ورلیږلی وای او میسره ته دې دوه جوړه جامې ترې اخیستې وای پیغمبرﷺ څوک ور واستول ، یهودي چې د پیغمبرﷺ استازی ولید ویې ویل: زه پوهیږم چې داولې راغی ؛ دی غواړي له مانه زما مال اوزما پیسې واخلي، پیغمبرﷺ وفرمایل: دروغ وایي ، ښه پوهیږي چې له خدایه ترټولو ډېرېدونکی او ښه امانت اداکوونکی یې زه یم )

## دامانت ګټې

۱- امانت دریښتیني ایمان اومسلمانۍ نښه ده.

۲- ځمکې او اسمانونه پرې ولاړ دي.

۳- ددین بنیاد او درب ازمایښت دی.

۴- دین، ناموس، مال، بدن، روح، علوم، حکومت، وصیت، ګواهي، قضاء اوکتابت...هرڅه په امانت ساتلي وي.

۵- امین سړی الله تعالی ته هم ګران وي او خلکو ته هم.

۶- له لوړو خویونو څخه دی چې الله تعالی خپل بنده ګان پرې داسې یادکړي: { وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ } (المؤمنون/۸، والمعارج/ ۲)

۷- په کومه ټولنه کې چې امانت وي هغه دبرکت او خیرسکالۍ ټولنه وي.

# معادن افغانستان در چنگال غارتگران

آمریکایی ها معدن بزرگ لیتیوم افغانستان را کشف کرده و در اختیار گرفتند که نه تنها از لیتیوم برای سیستم های کامپیوتری استفاده می شود بلکه کاربرد این فلز در سلاح های جنگی نیز تحول بزرگی را بوجود خواهد آورد. در واقع از لیتیوم برای ساختن مواد اصلی بطری های تلفن های همراه، لب تاپ و وسایط های برقی مدرن و همچنین برای تولید یکی از نادرترین داروها برای بیماری های عصبی استفاده می شود. نکته جالب اینجا است که چرا این موضوع در هیچ رسانه ای به صورت شفاف بازگو نشده است؟

ارزش این معدن کشف شده، بالغ بر یک هزار میلیارد دالر می باشد که اگر بخش اندکی از درآمد ناشی از این معدن صرف امور افغانستان شود، این کشور به یکی از پیشرفته ترین کشورهای منطقه تبدیل خواهد شد.

آمریکا جهانخوار و استعمارگران بزرگ تک محوری قرار دارد و لشکرکشی او به افغانستان برای رسیدن به منافع اقتصادی می باشد و گرنه جوانان خود را قربانی نمی کرد، .

این در حالی است که از ده سال به این رو معادن ما به غارت برده می شود اما این خبر تاکنون توسط هیچ یک از رسانه ها بصورت جدی انعکاس نیافته است تا مردم با خبر شوند. در زمان روس ها ۳۲۰ نوع معدن در افغانستان شناسایی شده بود اما آمار نشان می دهد که فقط ۲۲ نوع معدن در افغانستان وجود دارد. پس ۲۹۸ معدن دیگر کجا است؟ آخر چرا حکومت افغانستان تا این حد به خواب عمیق فرو رفته است؟

از جمله، معادن افشا شده که حتی بر سر آنها بین کشورهای غارتگر درگیری فیزیکی نیز بوقوع پیوسته است، یکی معدن اورانیوم هلمند و دیگری لیتیوم که در سه قسمت جداگانه در کشور سروی شده و یک مورد آن به چینی ها به عنوان حق السکوت داده شده است.

استخراج گسترده اما بی سر و صدای معادن بکر افغانستان که وزارت خانه های اقتصاد، معدن و صنعت و منافع عامه را این چنین کور و کر ساخته است، تحت بهره برداری های غیر اصولی چه کسانی جز خارجی ها، متنفذین صاحب نام، مسوولان پولیس و مخالفین مسلح می تواند باشد؟

بی شک، استخراج غیرقانونی و خودسرانه معادنی که حق یکایک باشندگان و اتباع افغانستان است با پول هایی که در جیب عده ای فرصت طلب، وابسته به حکومت ریخته می شوند ما را در آینده ای نه چندان دور به بحران فقر و قحطی همچون کشورهای آفریقایی می رساند.

زمانیکه تاریخ آمریکا و غرب را مطالعه نماییم، به سادگی به حقیقت خواهیم رسید که برای آمریکا و غرب، رسیدن به اهداف استراتژیک و اقتصادی، غارت منابع ملی سایر کشورها و تسلط بر بازارها و مناطق سوق الجیشی جهان ارزش حیاتی دارد که برای رسیدن به آن، ملت های فقیر را به خاک و خون می کشانند.

چور کردن دارایی های ملی بوسیله مشتی از وطن فروشان، بلاوقفه جریان دارد. مخصوصا در سالهای اخیر هرکدام برای قاپیدن عواید معادن کشور مسابقه دارند. مقامات خاین خود می گویند که بیش از ۴ میلیون جریب زمین دولتی از طرف مافیای زمین غصب شده است، اما آب از آب تکان نمی خورد.

معادن گاز طبیعی، سنگ لاجورد، زغال سنگ، جیوه، آهن، یاقوت، نفت، سنگ مرمر، مس، پنبه نسوز، اورانیوم، طلا و بسیاری دیگر از این ثروتهای کلان ملی در سایه استخراج بی رویه و بی توجهی مسوولین بر باد خواهد رفت.

بله، هم اکنون آگاهیم که آمریکا و دوستانش از میهن ما سرزمینی که تمام عناصر جدول کیمیاوی مندلیوف در آن هست چه می خواهند. (انترنیت)

**دهیوادله نامتو جیداومنل شوي دیني عالم اوسترروحاني شخصیت شیخ القران والحدیث مولانا عبدالستار جان ، سره دځر ک مجلې له لوري ځانګړې مرکه :**

# علم الهي نور دی اوهغه په پاک محل کې تقرر نیسي

۱ ـ پوښتنه : که څخه هم ستاسو شخصیت اوشهرت له چاڅخه پټ اوخفي ندي ، خوهسي دتبرک اونیک تفائل په نیت که تاسو جناب خپله لنډه پیژندګلوي باندي رڼاواچوي چې دهیواد په کومه ځمکه اوکومه نیټه مودي فاني دنیاته سترګي رڼي کړي ؟

ځواب : بسم الله الرحمن الرحیم

زمونږ تولد په ۱۳۲۷ هجری شمسي کې په یوکلي کې شوی چې ( حاجي خیل ) نومیږي اونوموړی کلی په تاریخي لحاظ یوعلمي اوروحاني مرکزپاتی شوی اودهمدې کلي له وجې ټولې علاقي ته ( موسهی شریف ) ویل کیږي ، چې هغه بیا دکابل ولایت دچهاراسیاب ولسوالی مربوط دی .

۲ ـ پوښتنه : جناب ، رومبنی زدکړي موچیرته اوله چاپیل اوباقي (منځنی اولوړې زدکړي) اودرسونه مو په کومو مدرسوکې ترلاسه اوبالاخره فراغت موچیرته وشو ؟

ځواب : ابتدایی زدکړه مودخپل والد محترم ( حضرت مولاناعبدالغفاراخوندزاده ) نه د (عبدالروف په کلا کې ) چې مشهورعلمي مرکز وو ویلي اوپه دې ځای کې زمونږ جَدّی امجَد تقریبا څلویښت کاله تدریس کړی وو اوورسته بیازمونږ والد محترم تقریباڅه کم دیرش کاله هلته تدریس ترسره کړ ، ابتدایي زدکړه دفقهي ترشرح وقایه پوري اوصرفوکې ترصرف میرپوري له ده وویل ، ورسته بیاله ډیرمحترم اوشفیق استادمحقق ، مدقق علامه ( مولانامحمدعبدالقدوس جان صاحب ) نورالله مرقده سره ملازمه له زنجاني نه تربخاري شریف پوري ، یعني ابتدایي ، وسطی اوانتهایي زدکړي موټولي له هغه څخه ترلاسه کړي اوسوادهدایه نه چې مکمله هدایه مودخپل تره مبارک جناب ( شیخ القران والحدیث محمدنبی جان ) اخوندزاده چې مشهوردسهاکوپه اخوندزاده وو وویلي ، فراغت اودحدیثو دوره مودکابل ولایت دګذرګاه په غوثیه مدرسه کې له جناب شیخ صاحب عبدالقدوس جان صاحب نه وکړه .

۴ ـ پوښتنه : جناب شیخ صاحب ، دیوه طالب اودیني متعلم لپاره ترټولولازمي اوضروري اداب کوم دي چې په طالبی کې یې بایدده‌غورعایت اوپیروي وکړي ، ترڅویوممتازاو له الله تعالی نه ویریدونکی باعمله عالم ټولني ته راووځي ؟

ځواب: ترټولو ړومبی دیوه طالب لپاره حسن نیت ضروري ده ، ځکه چې دټولو اعمالو دارومدار په نیت سره دی ، بل للهیت او اخلاص مهم دی چې د هغه په زریعه علم مثمر او مفید وګرځي ، دوهم ورته طهارت پکاردی ، یو طهارت ظاهري دی او بل طهارت باطني ، طهارت ظاهري لکه غُسل او اودس په او بو سره چې حقیقتاطهارت دی او یاحکماچې تیمم دی ، یعني د درس او د کتابونو د مطالعي په وخت باید طالب العلم د غه پاکي ولري او بل طهارت باطني دی چې هغه صفایي او طهارت له ګناهونو څخه دی چې باید اجتناب تري وکړي ، لکه د زړه ګناهونه ، په زړه کې ډیرخباستونه وي ، لکه حسد ، کینه ، عداوت او بغض چې زړه او سینه باید ترینه صفاوي ، ځکه په دغه محل کې علم تقررپیدا کوي او علم د الله تعالی یو نوردی او دا په هغه ځای کې ځای نیسي چې هغه محل قابل د دې نور وي یعني طهارت ولري ، لکه چې امام شافعي رح حضرت وکیع ته شکایت وکړو ( شکوت الی وکیع عن سؤحفظی ، فأوصانی بترک المعاصی اوقال ان العلم نورمن اله ونورالله لایُعطی لعاصٍ )

یعني علم الهي نوردی او هغه په پاک محل کې تقررنیسي ، دظاهر او باطن پاکوالی دیوه طالب لپاره ضروري اداب دی ، همدارنګه ملائک هغه کوټې ته نه داخلیږي چې هغه کې سپی وي ، ملائک نوراني مخلوق دی او سپی نجس دی له نجاست سره نوراني مخلوق نه یوځای کیږي ، داراز چې په زړه کې فاسدي عقیدي وي ، فاسد تصورات پکې وي نو علم یو نور الهي دی نو هغه په ناپاک زړه کې نه نشي یوځای کیدای.

دریمه خبره د طالب لپاره یکجهتي ده ، چې بلکل به توجه طرف د تحصیل د علم ته کوي او قلت په مشاغلو کې چې خپل شغلونه او کاروبارونه به کموي ، له ډیرو شغلونو سره حصول د علم نه کیږي ، ذهن بسیط دی په یوه وخت کې ډیرو امورو ته نشي متوجه کیدای اوله ډیرشغل سره په علم کې نواقص او کمي راځي ، لکه حضرت ابوهریره رض چې هغه په ټولو صحابه وو کې کثیرروایت صحابي دی او زمانه د صحبت یې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره تقریبا څه باندي دری کاله ده ، روایتونه یې د ټولو صحابه کرامو په نسبت زیات دي او خلکو به دا نسبت ده ته کاوه چې هغه ډیرډیرروایتونه کوي او بې احتیاطي کوي ، خو ابوهریره رض به فرمایل چې دا خوزما جرم ندی ، ستاسو نقصان دی ، ځکه ما ملازمه کړي او په صحبت له نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره مې شپه ورځ په سفر او حضر کې د علم د تحصیل لپاره یوه کړي ، یعني په خالي ګیډه اخته یم نه مال جمع کوم ، نه نقود او نه زخیري ، دومره څه چې راورسیږي چې په هغه باندي صرف ژوندی یم اکتفا پري کوم.

بل دا چې یو طالب العلم د علم په حصول پسي له کوره وځي اوله اقاربو جدایي اختیاره وي باید زیات حرص ولري تر څو ځان ترخپلې وس او قدرت په درس پوه او معلومات حاصل کړي ، لکه چې یوه ورځ حضرت ابوهریره رض له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه چې ( من اسعد الناس بشفاعتک یوم القیامه ) یعني د قیامت په ورځ به څوک تاته په شفاعت کې اسعد وي ، هغه ورته وفرمایل چې زما په ذهن کې دا وه چې له تا پرته به بل څوک دا پوښتنه نکوي ، علت یې ( لحرصک علی الحدیث ) ، بیا یې ورته ځواب ورکړ چې څوک ( لااله الله ووایی ، خالصً من قلبه ، دا اسعد دی )

نو د علم د حرص په وجه الله پاک په لړه موده کې ابوهریره رض کثیرروایت وګرځولو

او بل د علم د حصول او درس په وخت کې کامله توجه ضروري ده ، باید خپله ټوله ذهني قوه استاد ته متوجه کړي چې یو حرف او یوه خبره هم ترینه پاتي نشي ، بل ضروري امردادی چې طالب دیني باید استراحت طلبه نه وي ، که استراحت طلبه وي کامل علم نشي حاصلولی ، لکه مسلم شریف کې راغلی چې علم نه حاصلیږي په استراحت د جسد سره او بل قول دی چې علم نه حاصلیږي

په استراحت دجسد سره قطعاً، که یوطالب ارامه زندګي کوي اوپه مسترحه فضاکې اوسیږي ، مطالعه نکوي اوپه درس کې تکلیف نه باسي دا استراحت طلبي ده اوعلم په دغسي حالت کې نه حاصلیږي

حضرت امام بخاري رح چې الله پاک یومعجزانه حافظه ورکړې وه ، سربیره په هغه یې هم لوی مشقت کولو ، دهغه یوشاګردوایي چې امام بخاري رح سره په سفرکې وم یوه شپه یې ۱۵ یا ۱۷ کرته چراغ یې ولګولودکتاب مطالعه به یې وکړه اوبیابه یې چراغ مړکړو ، سهارماورته وویل چې ماته به دې امر کړی وو چې چراغ مې درته لګولی وای تاسي ډیرتکلیف وګاله ، امام بخاري رح ورته وویل چې ته شاب اوځوان یی مانه غوښته چې ستاخوب خراب کړم

همدارازبه امام محمدرح دشپې نه ترسهاره پوري ، کله چراغ ولګولو اوکتاب به یې مطالعه کړو اوکله به یې مړکړو ، دچراغ مړکیدلو څخه یې هدف دانه وو چې خوب وکړي ، بلکې دکتاب له مطالعي ورسته به یې په تیاره کې په هغه ځای اومسئلې داجتهاداواستنباط لپاره سوچ اوغوركاوه ، دماسخوتن په اوداسه به دسهارلمونځ هم اداکړ، همدامشقت اومحنت وو چې الله تعالی امام محمدرح ته لوی مقام اوشان ورکړو( من طلب المعالی صحرالیالی ) یعني چې څوک لوړي درجي غواړي نوهغه په خوب اواستراحت نکیږي.

دطالب العلم لپاره بله خبره داده چې وخت به نه ضایع کوي ، دوخت قدربه ورسره وي ، اما رازي رح وایي چې زه په هغه وخت ډیرافسوس کوم چې هغه زماپه اکل اوشرب تیریږي ، سره لدې چې اکل اوشرب هم ضروري دي. همدارنګه که یوڅوک غواړي کامل علم حاصل کړي ، نوهغه ته داستادادب اوخدمت پکارده، حضرت مولناانورشاه کشمیري رح نه چا پوښتنه وکړه چې ته خو انورشاه وي اواوس خلک درته( علامه انورشاه ) وایی ددې وجه څه ده ؟ هغه ورته وویل چې وجه یې ادب دی ، مادخپلو استادانوانتهایي زیات خدمت کولواوبل به مې دکتابونو ډیرلحاظ کولو ، یعني هیڅ دیني کتاب مې بې اودسه نه مطالعه کولو ، خصوصا ، دتفسیر، احادیثو اوفقه کتابونو ، بل داچې دکتابونوپه منځ کې مې هم ادب رعایتولوچې په قران کریم باندي ماکتاب داحادیثونه ایښودلو ، ځکه دقرآن مقام لوړدی په نسبت سره احادیثوته ، همدارنګه مې داحادیثوپه کتاب باندي دفقهي کتاب نه ایښودلواودتاریخ اونوروعلوموکتابونه مې په فقهي کتابونونه ایښودل ، یعني دکتابونوپه منځ کې مې هم دادب اومرتبې خیال ساته ، نودادب وجه ده چې ماته خلک اوس علامه وایي.

۵ . پوښتنه : کله چې یوعالم فارغ اودفضیلت پګړی ورپه سرکړل شي ، ستاپه فکر دهغومهمې دندي اومکلفیتونه څه دي اوپه خاص ډول دولس په منځ کې بایدڅنګه ژوندوکړي ، څه ترسره کړي اوله څه اجتناب وکړي ، ترڅو ددزیات خیررسولو مصدروګرځي ؟

ځواب : لکه دیوه طالب په څیرعالم اوفارغ ته هم ترټولواهم امر اخلاص اوحسن نیت دی ، له فراغت ورسته مهمه دنده دیوه عالم تدریس دی ، چې کوم علم یې ترلاسه کړی هغه بایدنوروته ورسوي تبلیغ اوتعلیم یې کړي

علامه کرماني رح وایي: سلمه ابن حمدابن قعب، قعنبی ، هغه له علم حدیث څخه له نوروملګروسره یوځای فراغت حاصل کړ، یوه شپه یې خوب لیدلو چې دقیامت ورځ وي اوالله پاک ځانته دعلماوو یووفددعوت کړي ، علمأ سره جمع کیږي اودالله تعالی ملاقات ته ورځي ماهم غوښتل چې ورسره یوځای شم ، خو زه یې بیرته واپس کړم ، ماورته وویل چې دغه ټول زمادردرس ملګري وو اویوځای سره فارغ شوي وي زه هم په دغه ټولي کې دالله ملاقات ته ورتلل غواړم ، خو ماته یې بیرته ځواب راکړچې ته نشي تللی ، سمه ده چې دغه ډله علمای کرام ستاددرس اوفراغت ملګري وو ،خودوی چې کله فارغ شول ، علم یې

نوروته ورساوه ، تدریس یې وکړ او خلکو ترینه استفاده وکړه ، خوتاهیڅ هم ونکړل ، له همدې کبله ته نن دالله ملاقات ته نشي وړاندې کیدلای ؛ سلمه وایی چې کله له خوب نه رابیدارشوم او سهارلمانځه ته ولاړم نوپه جومات کې مې اعلان وکړچې که هرڅوک اراده ددرس اوعلم ولري زه ورته تیاریم ، طالبان پرې راټول شول چې تالدې وړاندې دغه کارولي نه کاوه ،هغه ورته وویل علت دادی چې زه دعدم تدریس له وجې الله تعالی له خپل ملاقات څخه په خوب کې محروم وګرځولم.

همدارنګه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي (بلغوعنی ولوایه ) یعني اقل علم یوایت دی ، اګرکه ذکردایت دی ، مرادترینه حدیث دی ، دغه ډول تدریس څکه اهم دی چې هغه دعاګاني چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دیوه معلم اومدرس په حق کې کړي شامل حال وګرځي ، لکه مشهورحدیث دی ( ان الله وملئکته واهل السموات والارض لیصلون علی معلم الناس الخیر ) یعني معلم دناسو چې اوګرځي بیابه دالله رحمتونه اودملائیکو اوداهل ارض اوسمأ ، دعامواوخاصو ددعاګانو مستحق او شامل حال وګرځیږي.

یوه ورځ نبي کریم صلی الله علیه وسلم مسجدنبوي ته تشریف یوور چې هلته دوه حلقي ناستي وي ، یوه داهل ذکراوبله ددرس اوتدریس ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل دادواړه ډلي په خیردي ، یوذکرکوي اودالله نه سوال کوي که دالله خوښه شي څه به ورکړي اوکه خوښه نه شي وربه یې نکړي ، اودانورناست دي دالله تعالی دکتاب درس اوتدریس ته ( انمابعثت معلمًا ) هماغه وو چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم هم ددرس اوتدریس په حلقه کې کیناست

نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي ( انمابعثت لأتمّم مکارم الاخلاق ) نوپه یوه عالم باندې ضروري ده چې خلکوته علم ورسوی ، ترڅو دهغوی اخلاق ، تکمیل شي ، اصلاح دعقیدې یې وشي اواعمال یې سم اونیک شي او داخرت لورته توجه زیاته شي.

دعالم لپاره بل مهم امر نیک اخلاق دي ، څکه په نیکو اوحسنه اخلاقو سره اودنبوي سنتو په پیروي سره عالم په ټولنه اومعاشره کې یوښه اثرغورځوي اوخلک پرې راټولیږي او خبري یې اهمیت پیداکوي ، حضرت انس رض ددې ایت په تفسیرکې چې ( انافتحنالک فتح مبینا ) یعني تاسووایی چې فتح فتح دمکي په اتم کال باندې وه خو مونږ داسې وایو چې فتح دحدیبی ده ، دحدیبی په صلح کې چې لس کاله یې معاهده وه چې جنګ به نه وي اوازادي راغله ، دمکی خلک به مدیني ته تلل اومدیني مسلمانان به مکي ته او دمکي خلکوبه دمدیني خلکو ددښمن په سترګه کتل اومکي به مدیني خلکوته اوددښمنی عادت داوي چې که په دښمن کې نیک صفات اوخویونه هم ویني هغه پټوي اوبدیې ښکاره کوي ، خوچې کله کفارو دصحابه کرامو اومسلمانانو اخلاق اولیدل ، حسن معاشره ، دیانت ، تقوا ، سخاوت ، امانت داري عفت ، اطاعت ، عبادت ، قرباني او اداب له نیږدې وکتل نوسخت متاثره شول او ډیرافسوس یې ښکاره کړ چې مونږمسلمانانوته په کومه سترګه کتل اودوی څه ډول صفات اوخویونه لري ، دصحابه کرامو همدغه نیک مواصفات وو چې مشرکان ډلې ډلې اسلام ته داخل شول اوپه کثیرتعداد کې مسلمانان شول.

دحدیبي په صلحه کې دمسلمانانوشمیر بنابراختلاف ۱۴ یا۱۵ سوه وو خوچې کله دمکي دفتحي لپاره نبی کریم صلی الله علیه وسلم ( جیش جرار ) برابر کړشمېرېې له ۱۵ سوه څخه لس زروته دصحابه کرامو داخلاقو اونیکوخویونوپه توسط ورسید ، له هغه نه مکي بعثت دنبي کریم صلی الله علیه وسلم ۱۳ کاله او بیا۲ کاله په مدینه منوره کې چې دا ټول ۱۸ یا ۱۹ کاله کیږي دومره کسان په اسلام نه وو مشرف شوي ،لکه چې په ۲

کلوکې مشرف شول ، فتحه دمکې ته چې کله نبی کریم صلی الله له صحابه وو کرامو سره ننوت هلته چې کفارو دمسلمانو عفوه ، ایثار او نیک اخلاق اواداب ولیدل نوسخت متاثره شول ، ډیرخلک اسلام ته داخل شول له اتم کال څخه چې خبره ۹ کال ته ورسیده نو نبي کریم صلی الله دتبوک غزالپاره د۳۵ زرومجاهدینو لښکر تیارکړاوپه لسم کال حج الوداع کې له نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره تقریباتریولک اوپنځه ویشت زروپوري مسلمانانوبرخه واخیسته چې داټول دتعلیم ، حسن معاشره اونبوي اخلاقونتیجه وه



بل دیوه عالم لپاره په خپل علم باندې عمل زیات مهم دی ، چې دعلم دمقتضابرابرکردار ولري نودغه عالم بیاپه جامعه کې ښه رول لوبولی شي اوداسې نه چې خدای مکړه لکه دیهودودعلماوو غوندې چې ( اتأمرون الناس باالبروتنسون انفسکم ) اوهمدارنګه له هغې قبیلې ونګرځي چې هغه موجب دقهراوغضب الهي ګرځي اوددغه ایت مصداق ونګرځي چې ( کبرمقتاعندالله ان تقولو مالاتفعلون ) هغه څه چې وایې په هغه باندې بایدعمل وکړي ، یوعالم چې په خپل علم باندې عمل وکړي ، مثال یې داسې دی ، لکه دنور ، چې خپله هم رڼاده اونورخلک هم نوراني ګرځوي اوهغه عالم چې بې عمله وي دهغه مثال دهغې شمع دي چې نوروخلکوته رڼا ورکوي خوپه خپله سوځي ، له همدې کبله وایې چې ( علم بلاعمل وبالاً اوعمل بلاعلم ضلالٌ ) چې بې علمه څوک پیري اوبزرګي کوي نوداضلال دی اوڅوک چې علم لري اوعمل ورسره نلري نوداده لپاره وبال دی.

اودیوه عالم لپاره نورضروري ټکي دادی چې دعلم وقار به ساتي ، علم به دنیادټولولووسیله اوزریعه نه ګرځوي اوله تملق اودنیوي طمع اوهیلې څخه به ځان ژغوري . نوربیا

یادونه : دلاندې پوښتنو ځوابونه به دڅرک په بله ګڼه کې ولولی ، انشاالله تعالی

۷ ـ پوښتنه : محترم شیخ صاحب ! عصري علوم چې ددین اوعقیدې په خلاف نه وي اومثبته استفاده تري وشي ، لکه کمپیوټر ، دضروري ژبو زدکړه ، یاپه بل عبارت طب اوتخنیک ، تاسو هغه څه ډول ارزوي اوترکوم حده پرې فهم او معلومات درلودل ضروري بولی ؟

۸ ـ پوښتنه : جناب شیخ صاحب ! داچې په هیوادکې داشغالګروپه خلاف سپیڅلی جهاد روان دي اوپه خوراپاکواو معصوموقربانیومخ په وړاندې درومي ، تاسې دجهاد دیوه سپاهي لپاره کوم اموراواداب ډیرضروري اومهم بولی چې هغه عملي پرځان تطبیق اورعایت کړي ، ترڅوهم الهي رضا حاصله کړي اوهم دولس خواخوږي اومینه جلب اوخپله وګرځوي ؟

۹ ـ پوښتنه : په اخیرکې محترم شیخ صاحب که د فرهنګي کمیسون نشراتي برخې ته څه نصایح اولارښوونې وکړي ، خوشحاله به شو ؟

شاهد غزنيوال

# امريکايان ولې د افغانستان پرېښودلو ته ځان نه تيارکوي؟



په افغانستان او د هغه په تعقيب په عراق باندې تر امريکايي يرغل او په دغو دواړو هېوادونو کې د مقاومت کوونکو د مقاومت له امله د امريکايانو له ملاماتوونکو ځاني او مالي تلفاتو وروسته له ټولو سره دا فکر وه چې امريکايان غواړي د خپلې اشتباه په منلو سره له دغو هېوادونو خپل ځواکونه بيرته وباسي.

په تيره په ۲۰۰۹ کال کې چې کله اوباما د امريکا د متحده ايالاتو د ولس مشر په توگه واک ترلاسه کړ نو موړي له افغانستان او عراق څخه د امريکايي ځواکونو پرشاتگ د خپلو کاري لومړيتوبونو له جملې څخه گاڼه.

هماغه وه چې له عراق څخه يې په کال ۲۰۱۰ کې امريکايي ځواکونه پرشا او افغانستان ته يې د امريکايي ځواکونو د تقويت لپاره ۳۰۰۰۰ نور اضافي ځواکونه راوليږل.

په ۲۰۱۰ کې د امريکايانو او د هغوئ د نورو ايتلافي ځواکونو له زياتوالي سره سره دغه کال په افغانستان کې د بهرنيانو لپاره تر ټولو خونړی کال وه چې د دوئ په اعتراف په همدغه کال کې تر اووسوه زيات بهرني عسکر له طالبانو سره په جگړو کې ووژل شول.

په افغانستان کې د بهرنيو ځواکونو له زياتوالي سره سره د طالبانو لخوا له هغوئ سره د مقاومت برياليتوب نور د هغوئ په زړه کې دا خبره يقيني کړه چې همدلته که هرڅومره بهرني ځواکونو را ډيريږي په هماغه اندازه به يې ځاني او مالي تلفات هم ورسره زياتيږي چې دوئ به ورکې هيڅ راز لاسته راوړنه نه لري.

هماغه وه چې د امريکا ځينو متحدينو لکه هالنډ ، کاناډا ، فرانسې او ځينو نورو له افغانستان څخه د خپلو ځواکونو په بيرته ايستلو پيل وکړ ، او په مجموع کې د امريکا او د هغوئ د متحدينو لخوا د ۲۰۱۴ کال د جولای مياشت له افغانستان څخه د ټولو بهرنيو ځواکونو د وتلو نهايي نيټه وټاکل شوه.

په ۲۰۱۲ کې د بهرنيو ځواکونو د پرشاتگ د نيټې په رالنډيدو سره د امريکايانو لخوا له افغانستان سره د امنيتي تړون د لاسليکولو جنجالي موضوع راسربيره شوه.

دغې موضوع ته ځکه جنجالي موضوع وايو چې هغه هم د افغانانو او هم د بهرنيانو د توقعاتو خلاف د امريکايانو لخوا په تصادفي ډول را پورته شوه تر څو دهغې په وسيله خپل اشغال نورهم په افغانستان کې تمديد کړي.

داچې ولي امریکایان په خپلې پوځي استراتیژي کې دا ډول ضداو نقیض بدلونونه راولي د دې تر شا ډیر عوامل موجود دي چې ځیني یې مختصراً په لاندې ډول تشریح کیږي.

## په سیمه باندې د امریکې دائمي تسلط حاکمول.

د افغانستان جیو استراتیژیک اهمیت ته په کتلو سره امریکا د نړیوال استعمارګر ځواک په توګه غواړي په سیمه کې د خپلو توسعوي سیاستونو د اعمال لپاره په افغانستان کې د پښې ایښودلو ځای ولري.

هغوئ چې په ۲۰۰۱ کال کې په افغانستان یرغل وکړ یوائنۍ هدف یې داوه چې په افغانستان کې پوځي مرکزیت ولري او له همدې پوځي مرکزنه د ټولې سیمې دڅارنې په تیره دمرکزي آسیاد تسخیر لپاره پلان ګذاري وکړي.

افغانستان ته د امریکایانو راتګ نه د افغانستان د امنیت ، نه د هغه د ترقي او نه د هغه د بیارغوني لپاره وه ، بلکې یوائنۍ هدف یې د منځنۍ آسیا تسخیرول دي چې دهغه لپاره امریکایانو له په اصطلاح تروریزم سره د مقابلې په پلمه نړیوال ایتلاف هم ملګری کړ.

اوس چې هغوئ دهمدغې مصطنعې پلمې تر نامه لاندې دنړیوال ایتلاف په مرسته افغانستان ته راغلي دا د دوئ لپاره لویه لاسته راوړنه ده

هغوئ په دې لاره کې ډیر لګښتونه کړي ، په زرګونو پوځیان یې وژل شوي او ښایي نورهم په لسګونوزره ژوبل او ووژل شي خو دوئ به لاهم خپل مسیرته د پرمختګ په لوري حرکت ورکوی او هیڅ نه غواړي له خپله همدغه محوري مسیرنه مخ وګرځوي.

## ولي محوري مسیر ؟

امریکا د نړۍ پرمخ تر ټولو مهم اقتصادي او صنعتي هیواد دی . د امریکا ټول صنعت او تولید په نفتو ولاړ دی، امریکایان په ورځني شکل ۸۰ ملیونه بوشکې نفت په خپلو تولیدي توکو او صنعتي فابریکو کې مصرفوي.

هغوئ د دغو ۸۰ ملیونه بوشکو له جملې څخه ۲۱ ملیونه له بهرڅخه واردوي.

امریکا چې په نړیواله کچه له سعودي عربستان او روسیې وروسته دریم نمبر د نفتو لرنکی هیواد دی په اوس وخت کې خپل ټول نفتي واردات له خلیجي هیوادو څخه ترلاسه کوي. په دغو عربي هیوادونو کې د نفتي منابعو په تدریجي کمیدو سره امریکایان غواړي د خپل صنعتي ماشین د فعال ساتلو لپاره د منځنۍ اسیا دنفتو او غازو منابعو ته لاره پیدا کړي. هغوئ له ډیره وخته راهیسې په دې پلان کار کړی چې څرنګه وکولای شي د منځنۍ آسیا نفت او غازوته لاس رسی ولري. دمنځنۍ آسیا دری هیوادونه ، قزاقستان، ترکمنستان او آزربایجان د کسپین د سمندر په غاړه پراته هغه هیوادونه دي چې د نړۍ په کچه دوهم نمبر دنفتو او غازاحتیاطي زیرمې لري.

امریکایان غواړي دغو زیرمو ته په رسید لو او د هغوئ په خپل کنټرول کې راوستلو سره په اورپایي هیوادونو کې د روسانو د اقتصادي نفوذ مخنیوي وکړي ؛ ځکه په اوسنیو شرائطوکې روسیه د اوروپایي هیوادونو ۲۷ په سلوکې نفتي اړتیاوې او ۵۰ په سلوکې دغازو اړتیاوې ورپوره کوي.

له اقتصادي اهدافو ماسیوا هم منځنۍ آسیا د امریکایانو لپاره ډیر زیات استراتیژیک اهمیت لري.

منځنۍ آسیا او د ققفاز سیمه د نړۍ د زړه حیثیت لري ، همدغه سیمه له داسې هیوادونو سره سره ګډه پوله لري چې هغه په نړیواله کچه اوس محوري هیوادونه بلل کیږي.

ځکه منځنۍ اسیا د روسیې جنوبي برخه ، دچین لودیځه ، دافغانستان شمالي، دایران شمالي او ختیځه ساحه او دترکیې هیواد ختیځه برخه احتواء کوي.

همدغه سیمه اوس د امریکا ، چین ،اوروسیې ترمنځ د اقتصادي ،پوځي او سیاسي مسابقې تر ټولو تود میدان بلل کیږي ، په همدغه سیمه کې هسې خپل قدم کیښودل د امریکایانو لپار لوي غنیمت ګڼل کیږي او د دغه قدم

اینبودلو لومړنی ځای افغانستان دی چې امریکایانو د ډیرو زیاتو ځاني اومالي تلفاتو په قبلولو سره ورته لاره پیدا کړې.

## خلاصه.

امریکایان نن په نړیواله کچه مسلط جهت ګڼل کیږي ، د هغوئ سیاسي او پوځي تسلط د دوئ د اقتصادي او صنعتي تسلط محصول دی ، لهذا دوئ کوښښ کوي چې نور هم د پوځي هلو ځلو په مرسته په نړیواله کچه خپل سیاسي تسلط حفظ کړي.

هغوئ د دغه تسلط د برقرار ساتلو لپاره تربل هرڅه زیات په اقتصادي منابعو ترکیز لري .

همدا لامل دی چې هغوئ غواړي په افغانستان کې په پاتې کیدلو سره منځنۍ آسیاته د رسیدو او هلته د نفتو او غازو دطبیعي زیرمو په کنټرولو ولو سره خپل پوځي، اقتصادي او سیاسي تسلط وسعت ورکړي.

امریکایان د نړۍ د مغرورو مستعمرینو په توګه غواړي نور ولسونه د خپلو اقتصادي مصالحو لپاره په داسې توګه وکاروي چې دهغوئ خپلواکي سلب او هیوادونه یې اشغال کړي.

پخوانیو شورویانو هم دنورو ولسونو داستعمال او د هغوئ د استقلال د سلبولو لپاره ورته پلانونه لرل ، هغوئ هم د ننیو امریکایانو په څیر د خپلو پلانونو د عملي کولو لپاره افغانستان اشغال کړ ، خو دافغانانو مقاومت نه یواځې داچې د هغوئ دغه استعماري پلان ورشنډ کړ ، بلکې په توله نړۍ کې یې د شوریانو واکمني ته د پای ټکی کیښود.

امریکایان د سیاسي قمار بایلونکو په توګه خپل ټول توان د دې لپاره کاروي چې د افغانستان په محکوم ساتلو سره خپل نړیوال وجاهت خوندي وساتي !

دوئ پوهیږي چې د افغانستان له لاسه ورکول د دوئ لپاره د خپل نړیوال وجاهت د له لا سه ورکولو مانا لري ، همدا لامل دی چې هغوئ د راتلونکي احتمالي بُرد(ګټلو ) په تمه او سنی یقیني باخت(بایلل ) په هسکه غاړه مني.

امریکایان د احمقو او دنورو یرغلګرو له برخلیک څخه د عبرت نه اخیستونکو اشغالګرو په توګه اوس غواړي د امنیتي تړون تر نامه لاندې په افغانستان کې خپل نامشروع یرغل ته د تداوم او تمدید زمینه مساعده کړي، هغوئ په هرقیمت چې وي غواړي په افغانستان کې دائمي پوځي مراکز ولري ، د همدغو پوځي مراکزو له شتون څخه د دوئ اصلي هدف د افغانستان بې ثباته ساتل( یا په بله اصطلاح اوبه خړول او د کبانو نیول ) دي.

امریکایان په هیڅ صورت نه غواړي په افغانستان کې داسې یو خپلواک مقتدر دولت رامنځته شي چې هغه له دوئ څخه د دوئ دجنایاتو اوکړنو د پوښتنې وړتیا ولري.

داټول د امریکایانو نیتونه او عزائم دي چې د افغانستان له اشغال څخه یې د خپلې استعماري سلطې د ټینګولو په اړه لري ، خو افغانستان هم دغیرتي مسلمانانو د ټاټوبي په حیث خپل داسې سرښندونکي غیرتي بچیان لري چې د دې اسلامي هیواد له سپیڅلي حریم څخه دفاع دخپل ژوند تر ټولو مقدس آرمان بولي.

همدغو غیرتي افغانانو لکه چې د پخوانیو انګریزانو او شورویانو له ناولي اشغال څخه یې خپل ټاټوبی ازاد کړی او ساتلی همداسې د اوسنیو یرغلګرو امریکایانو له اشغال څخه د خپل هیواد د دفاع او خپلواکي روحیه لري ، په همدغې اسلامي روحیه یې له امریکایانو سره مقابله پیل کړې، په مقابله کې یې د لوی خدای په فضل او نصرت سره نبې لاسته راوړنې لرلې او که خدای کول نهایي بری به هم د دوئ په برخه وي.

ان شاء الله

وماذلک علی الله بعزیز.

# زنان هموطن قربانی اهداف و امیال غربی ها

حبیب الله یوسفزی

بر اساس راپورهای اخیر، اشغالگران امریکایی به بهانه کاریابی برای زنان افغانستان دوصد میلیون دالر اختصاص داده اند، تخمین زده می شود که دوستان دیگرش همانند استرالیا، انگلیس، جاپان و دیگر کشورها نیز دست به اقدامات مشابهی بزنند، این نخستین بار است که برای به بیراهه کشاندن زنان تا این اندازه کمک صورت می گیرد.

از این پروگرام تنها دختران و زنان بین سنین ۱۸ تا ۳۰ ساله می توانند مستفید شوند...؟!! در جامعه افغانی زنان یک مقام مشخص و احترام خاصی دارند، فرد و اجتماع به انها به دیدهٔ عزت می نگرند، از برکت انها در خانواده ها و اقوام مختلف دوستی، خویشاوندی و روابط ایجاد می گردد، به زنان به چشم مادران مهربان، خواهران محترم، دختران مشفق و خانه دار خانه نگریسته می شود، چادر و پای قدم انها را به فال نیک و به چشم خوشبختی می بینند و همین دلیل است که برای اختتام و از بین بردن بسیاری از بدیها و جنگها مادران با شهامت چادر خویش را می گستراند و با آواز دل سوز خویش مردم را به صلح و آشتی دعوت می کند که در نتیجه دشمنی به دوستی تبدیل می شود.

اما اشغالگران و اجیران انها همیشه تلاش نموده اند تا این وجود و هستی محترم افغانی را کمرنگ نمایند، تحت عنوان کمک به زنان به اعتماد و باور بین مردان و زنان زیان برساند، به بهانه حقوق آزادی، کار و تعلیم تبلیغاتی بر خلاف دین اسلام، کلتور و فرهنگ افغانی به انها بیاموزد، به امید پول، مقام و منصب دولتی انها را به بیراهه کشانده و تلاش دارند تا انها را برای قیام بر علیه جامعه و دین خویش ترغیب نمایند.

امریکایی ها و دوستان شان در این دوازده سال گذشته تا آن اندازه در این راستا تبلیغات و پروپاگند به کار بستند که چادر عزت و لباس سنگین افغانی را از شعارهای عقب مانده جامعه تعریف کردند، مادران با عزت خانواده ها را به بی خبری از حقوق خویش متهم

نموده و زنان با حیا و با عفت ما را با استفاده از وسایل تبلیغاتی خویش ترغیب کردند تا بر خلاف دستورات خانوادگی و کلتور جامعه خویش استعمال گردند، تا حیثیت سنگین، عزت و عفت انها به بی پردگی و عریانی تبدیل گردد و به اصطلاح افتخار یک زندگی مترقی و آرام اجنبی را اختیار کنند.

کمک امریکایی ها برای زنان در حقیقت برای آزار و اذیت ها و افزایش مصیب های انان قسمتی از یک پلان سنجیده شده است، قوت های تجاوزگر می خواهند تا بر آن قسمت جامعه تمرکز بیشتری داشته باشند که هم آسیب پذیر باشد و هم برای بدبختی جامعه از انها بسهولت کار گرفته شود وگرنه این کمک ها باید با آن عده از خانواده های مهاجر و بی سرپناه افغانستان صورت می گرفت که هم اکنون در بسیاری از مناطق کشور حتی در خود کابل در شرایط بسیار سخت شب و روز زندگی را به پیش می برند، نه خانه دارند و نه خوراک و پوشاک، اطفال خوردسال شان از گرسنگی و بیماری در آغوش مادران شان زندگی شیرین خویش را از دست می دهند!.

این بظاهر دوستان، به شکل شیطان در میان مرد و زن خانواده نفوذ نموده و زندگی شیرین و پادشاهی معنوی انها را از بین می برد، انها را از هم جدا نموده و از همین رو مشکلاتی را در این نوع خانواده ها ایجاد می کنند که قربانی اول خود همین زنان و دختران با عزت و باعفت افغانستان هستند و حتی در ان موقع نیز از انها به عنوان تبلیغات و پروپاگندهای خویش استفاده می کنند.

مساله خانم نورزیه اتمر می تواند مثال زنده ای برای حقایق فوق باشد: او یکی از اعضای قبلی مجلس نمایندگان در اداره بنام کابل بود و به گفته خودش شکار زد و بندهای خانوادگی گردیده است و از دو سال بدینسو (به اصطلاح تجاوزگران) در خانه امن زندگی می کند.

این فیصله را به قاضی ها و خوانندگان محترم واگذار می کنیم که نامبرده خوب کرده یا بد، او ملامت است یا شوهرش؟

در اینجا تنها به این گفته فکر کردن لازم است که او اکنون چه احساس می کند؟، به اعتبار او در جامعه چقدر صدمه رسیده است؟، او از جانب خانواده، خویشاوندان و دوستان تا چه اندازه تحت فشار روحی قرار دارد؟، زندگی شیرین او در نتیجه ایدیالوجی غربی، فرهنگ بیگانه و دستورات اجنبی ها قربانی چنین مصیبتی گردید، اما سوال این است که برای او چه سودی به بار آورد؟

# دیوید کامرون

خبیراحمدم

## په هلمندکې کومه لاسته راوړنه یادوي ؟

دبرتانیې ړومبی وزیر دیوید کامرون؛وایي په افغانستان کې دبرتانوي قواوو ماموریت په "کامیابی سرته رسیدلی " اواوس هغه وخت دی چې برتانوي عسکرخپلو کورونو ته ستانه شي .

دیوید کامرون؛ چې دغه خبري تیره اونی دهلمند په یوه پوځي برتانوي مرکزکې کولي ،په ډیرې سپین سترګی یې داخبره په خوله راوړه چې ددوی قواوو دهلمند په ولایت نسبي امنیت خوندي کړي ، دخلکو په ژونداوشغل کې یې دپام وړ مثبت بدلون راغلی،چې دده په فکربرتانوي عسکرلدې ورسته په لوړوسترګو کولای شي افغانستان اوپه خاص ډول هلمند پریږدي.

نه پوهیږو چې دبرتانیې ړومبی وزیرپه کوم استدلال اواعتماددهلمند دامنیت او هلته دکامیاب ماموریت خبره کوي ، ایابرتانوي پوځیان پرته له پوځي بارکونو چې دهغوله ګردچاپیرنه یې هم په کلومترو ساحه په امنیتي دیوالونو اوخندونو پوښلي دومره زړه اوهمت لري چې دهلمند په کومه سیمه کې ازاد وګرځي ؟.اوایاهلمندیې لږ ترلږه هغې درجې ته رسولی چې خپله دوی ورته پرامنه سیمه ووایي اوله ناامنیو څخه یې پاک ولایت اعلان کړي؟

مخکې لدې چې دیوید کامرون په هلمندولایت کې دخپل کامیاب ماموریت لاپه خوله راوړي وای ړومبی یې باید له خپلو عسکرودا پوښتنه کړې وای چې په ۲۴ ساته کې په دوی څومره بریدونه اوحملې ترسره کیږي اوددوی قواووي پرته له هوایي وحشت څخه نوردډې وس اوصلاحیت لري چې دمجاهدینو په خلاف کوم پوځي حرکت او عملیات پرمخ بوځي ؟

پاتي شوه دهلمند دخلکو داقتصادي حالت دښه والي موضوع ،دهلمندخلکو ته خوتراوسه ددې خبري معلومات نشته چې برتانویانو په هلمندکې کومه داسې مهمه اقتصادي پروژه چې بنیادي اهمیت ولري اولږ ترلږه ۲زره تنه هلمندیان پکې مصروف شوي وي اودفقراوغربت کمبله یې ټوله شوي وي په کوم ځای اوکوم کال کې په کاراچولي ؟

که دبرتانیې ړومبی وزیردمخدره توکو اوهیرویینو تولیداوقاچاق دهلمند دخلکو اقتصادي ښیرازي بولي ، اول خو دغو لعنتي بوټو اوکروندي ته هم طالبانو دپای کلک ټکی ایښی وو اودهلمند په ګډون په ټول افغانستان کې چایوبوټي هم نشو کرلی ، خو دادوی دمخدره توکو له ماشین څخه راولویدلي اوتولید شوي حشرات و چې کله یې دافغانستان په پاک حریم پلید قدم کیښود نوتربل څه وړاندې یې خپلي مافیایي ډلې او واکمن دمخدره موادو کروندي واوقاچاق ته وګمارل ترڅو غرب او اروپایي بازارونو ته یې په خاصو الوتکو کې ورسوی اوپه مقابل کې

پرې خپل جنګي لګښتونه او مصارف پوره وګرځوي؛ مطلب دا چې د هلمند عام ولس لدغې لارې هم کومه ګټه نده ترلاسه کړې ، بلکې محدودو کړيو چې سرپرستي يې د امريکا او برتانيا استخباراتي باندونه کوي ترګوتو کړې ؟

هلمند خو د تيرو ۱۳ کلونو په اوږدو کې د برتانيا په برخه رسيدلی وو ، که برتانيې غوښتلی چې نوموړې ولايت اباد او د خلکو مالي وضعيت ښه کړي ، نوکولای يې شول چې دغرب ترټولو متمول او پرمختللی دغه هيواد اوس هلمند په داسې حال کې ترک کړی وای چې هغه شيش محل وای او په اقتصادي ډګرکې په ټول افغانستان کې ممتازه سيمه وای.

وحشي برتانويانو خو د اشغال په ټوله موده کې تنها د هلمندي ولس په وژلو او کړولو تيرکړل ، نه يې هلته کوم سترروغتون اباد کړ ، نه يې د ابو مهم بندورغولو ، نه يې قوي او متکي برښنا هلته جوړه کړه او نه يې کومه صنعتي فابريکه تاسيس کړه ؟

نو اوس دې د برتانيې ړومبی وزيرووايي چې په کوم ويار هغه د هلمند په ولايت کې د کامياب ماموريت خبره کوي او دده په اند په سربلندي خپل عسکرترې ويستل غواړي ؟

د هلمند يوځوان چې له يوې غربي رسنی سره يې تيره مياشت مرکه کړې او نوم يې نده په ډاګه کړې ډيره په زړه پوري خبره کړې ، چې برتانوي او امريکايي عسکرو زما بېګناه پلار شهيد کړ ، مونږ ۷ وروڼه وو کلک عزم مو وکړ چې د خپل پلار انتقام ترڅو وانه خلو په ارام نه کينو ، هماغه وو چې مونږ د خپل پلار ۷ برابره غچ او انتقام له برتانوي او امريکايي عسکرو واخيست اوس که خارجيان وهم ووځي کوم ارمان يې نه راځي !!

## دعبادت شپې

کله به چې ژمی راغی عبيد عُمير رحمه الله به ويل: ای دقران مينه والو! دعبادت له پاره شپې اوږدې شوې، او د روژې له پاره ورځې لنډې شوې، نو دا وخت غنيمت وشميرئ. {کتاب الزهدللامام احمد.{

## دری کسان

رسول الله صلی الله عليه وسلم وايي: له دريو کسانو سره به الله جل جلاله دقيامت په ورځ خبرې نه کوي، او نه به ورته ګوري، نه به يې تزکيه کوي او دې دريواړو ته دردوونکی عذاب ورکوي:

۱ يو هغه چې پايڅې يې په بيډيو پرتې وي.
۲ دويم هغه چې له يوچا سره ښيګڼه وکړي او بيا يې ور يادوي.

۳ او بل هغه چې دخپل مال او سامان د خرڅولو له پاره په دروغو قسم کوي. أخرجه مسلم في صحيحه .

## پنځه نصيحتونه

دحضرت محمدصلی الله عليه وسلم حضرت انس رضی الله عنه ته پنځه نصيحتونه

حضرت انس رضی الله عنه وايي چې: ماته پيغمبر صلی الله عليه وسلم پنځه نصيحتونه کړي دي او هغه دادي:
۱ ـــ ای انسه! پوره اودس کوه، عمر به دې زيات شي.
۲ ـــ زما پر هر امتي سلام کوه، نيکي به دې زياتې شي.
۳ــ په مېرمن دې سلام اچوه، په کور کې به دې خير زيات شي.

۴ ــ د څاښت لمونځ کوه، له تانه چې مخکې کوم نيکان وو هغوی نه پرېښودل.

۵ ــ ای انسه! په کمکيانو رحم کوه، د مشرانو درناوی کوه، نو د قيامت په ورځ به زما ملګری شي. [ تفسير ابن کثير

# تشخیص الصوت

## یا د آواز پیژندني آله

حافظ محمد خراساني

الله تعالی فرمایلي دي: و في انفسکم، افلا تبصرون. یعني ستا په ځانونو کې (د الله تعالی د قدرت نښې دي)، آیا تاسو یې نه وینئ؟

ربښتیا هم د انسان په وجود کې الله تعالی د خپل د قدرت په لکونو، کروړونو نښې ځای په ځای کړي دي، د هغوی له جملې څخه یوه نښه انساني آواز، صوت او Voice دی، که په دقیقه توګه آواز وڅېړل شي، نو د الله تعالی په زرګونو قدرتونه به پکښې ولیدل شي. دلته موږ یوازې د انساني آواز له بل سره په بیلتون او توپیر لیکنه کوو.

انسان ته الله تعالی دا قدرت ورکړی، چې د آواز په ښه خپل مطلب نورو ته ورسوي. د ساینسي پرمختګ له امله دا خبره ثابته شوې ده، چې د هر انسان آواز له بل سره مغایرت او توپیر لري. د همدې توپیر د معلومولو لپاره یوه داسې آله (تشخیص الصوت) جوړه کړې شوې ده، چې هغه د مختلف کسانو د آوازونو په منځ کې توپیر څرګند کړي.

د آواز د مغایرت او توپیر دا خبره څومره نوې نه ده، ځکه تاسو به لیدلي وي، چې یو ړوند له کلونو کلونو څخه وروسته یو کس د هغه د آواز په اوریدو پېژني، بلکې مهمه د داسې آلې (تشخیص الصوت) موجودیت دی، چې هغه آواز پېژندلی شي، د انساني آواز د لهرونو، لوړونو، ژورونو، ګړندیوالي او ټیلمټیلوالي توپیر په دقیقه توګه کولای شي، نو که د کوم کس آواز یو ځل له همدې آلې سره ثبت شي، هغه هر وخت، په هره طریقه، له هر ځای نه، د هرې وسیلې په ذریعه او په هره لهجه خبري وکړي، نو آله یې پیژني، چې دا هغه فلانی کس دی. دا آله په ټیلفون یا موبائل کې د جاسوسي لپاره زیاته استعمالیږي.

د دې لپاره چې د ګڼ کسانو آوازونو ثبت او ریکارډ شي، داسې یوه آله را منځته شوې، چې هغه په یو وخت کې د یو لک کسانو څخه د زیاتو د خبرو ثبتولو ظرفیت لري، او په عین حال کې بیا د همدې ثبت شوي آوازونو تعین په (تشخیص الصوت) سره کیږي. که تشخیص الصوت د خپل مطلبي کس خبري څرنګه واوري، نو په اتومات ډول خپل مرکز ته هم اطلاع ورکوي او د هغه کس د آواز ثبتولو لپاره ځانګړي دوسیه جوړوي.

د بېلګې په توګه قاري صادق د صلیبي ښکیلاک په خلاف په لړي پرتو سیمو او غرونو کې په فعالیت بوخت دی. هغه اکثر له خپلو ملګرو سره ټیلفوني اړیکې نیسي، که چیرته د هغه د بې پروا خبرو له امله د هغه آواز یو ځلي (تشخیص الصوت) ته ور پېژندل شوی وي، نو که هغه له هر ځای څخه خبري کوي، د هغه خبري په ځانګړي دوسیه کې ثبتیږي. که چیرته هغه خپله شمیره بدله کړي، نوی ټیلفون هم تر لاسه کړي، بیا داسې ځای ته د لږ وخت لپاره هم لاړشي، چېرته چې امریکایان برلاسی وي، هلته بیا په ټیلفون کې خبري وکړي، تشخیص الصوت په اتمات ډول مرکز ته د هغه په اړوند اطلاع ورکوي او د هغه موقعیت هم ورته معین کوي، دولتي کسان ورځي او هغه کس نیسي. د قاري صادق ملګري حیران دي، چې صادق خو خپله شمیره هم بدله کړې وه، له چا سره نه وه او څوک پرې خبر هم نه وو، نو یو بل ته وایي: قسم په خدای کوم ملګري یا شناخته کس د هغه جاسوسي کړې ده. په خپل منځ کې باوري ملګري سره بې باوره شي.

دریو اتلانو،

جمیل میړنی

# امریکایانو ته ۲۰۰ میلونه زیان واړاوه

دلیندی په ۲۸ نیټه په حساب دریو تنو فدایي اتلانو سهار له پنځه نیمو بجو څخه دورځي تر ۹ بجو پوري دلوی او مقتدر رب جل جلاله په مرسته وکولای شول چې د ننګرهار ولایت د تورخم په سرحدي ښارګوټي کې دامریکایانو مهم نظامي مرکز او د اکمالاتو لوی تم ځای په بل مخ واړوي او ټول لاړ پوځي وسایط ، وسلي او قیمتي سامان الات سکروټي او خاوري ایري وګرځوي !

ورستی لوی او تاریخي زیان چې امریکایانو ته ورواوښت علت یې دانه وو چې په دغه لوی امریکایي تم ځای او مرکزباندي امنیتي حصار او خارنه وو موجود ، بلکې داهرڅه وو او شاوخوا ترینه داخلي اجیر وعسکرو کلکي او حاکمي پوستي جوړي کړي وي او داسې هم نه وو چې دریو تنو اتلانو تنها پوځي وسایط او زخیري له منځه یوړي ، بلکې له هغوی سره یې هم ترورستی سلګی او مرمی پوري په ډیرمتانت او شجاعت جګړه وکړه او درانه تلفات یې ورواړول.

په یاده ځلورساعته نښته کې چې په سپکو او درنو وسلو د سمبالو فدایي مجاهدینو لخوا په خورا ځیرکتیا او تاکتیک سره ترسره شوه ، د دښمن دوه مهم هدفونه یې له منځه یوړل ، لومړی هدف چې د اکمالاتي موټرو تر ټولو ستر

تم ځای بلل کیده په ټولیزه توګه له منځه یوړل شو ، د برید نه مخکې یاد تم ځای ته په لسهاوو میقناطیسي ماینونه د ننه کړل شوي وو چې ټول په عراده جاتو پوري په خورا مهارت نښنول شوي او بیا د برید په مهال یو یو منفجر کړل شول، په دوهم هدف چې د بهرني او کورني دښمن ګڼه هستوګن ځای وو هم مخامخ فدایي بریدونه وشول چې د سپکو او درنو وسلو په ګوزارونو سره دښمن ته په خوب خونو ، پیره دار خانو ، نظام قراول او برجونو کې درانه د سر زیانونه واوښتل، چې د کره شمیرو له مخې مجموعا (۱۰۲) لوي ټانکونه، (۲۲) له پوځي وسائلو ډک کانټینر، (۱۴) د تیلو ډک ټانکر، (۴۸) بار ټیلر او په ډیر ګڼ تعداد کې نور نظامي نقلیه وسائط او مهمات له منځه لاړل

د تورخم ورستی برید په داسې شیبو کې ترسره شو او دریو تنو فدایي اتلانو امریکایي استعمارته د ځلورساعتونو په اوږدو کې شاوخوا ۲۰۰ میلونه ډالرزیان واړاوه چې له یوه لوري غلیم غواړي خپله قیمتي تکنالوجي او پرمختللي اضافي جنګي ماشین له افغانستان څخه انتقال کړي ، له بل لوري یې په دې ورستیو کې له خپلو غلامانو سره دیوې حلقه بګوشي جرګي په مهراوترخ

کې زړه ته څه ناڅه داخبره لويدلې وه چې ګواکې نورېې افغانستان دځان اومستعمره وګرځاواودامنيتي تړون اوقضايي مصئونيت په مټ يې نورپه افغانستان کې جرړې اوځالې پخې وګرځيدي !؟

خودمجاهداوتاريخي افغانستان دا ستقلال او مقدساتو اصلي علمبردارانو او سپاهيانو دتورخم په ګوزارسره امريکايانو ته په ډاګه کړه چې هغه خيري اوجرګې چې دوى دډالرو په زور دخپلوګټواومنافعولپاره استخدام کړې ، هيڅکله ددې خاوري اوولس استازيتوب نشي کولاى اونه هم ددې وس اوقدرت لري چې ديرغلګروپه وړاندې دافغان ولس دجهاداوانتقام عزم اوداعيه کمزوري اوخاموشه کړي.

دتورخم بريدامريکايانوته دغه پيغام په څرګندوټکوکې ورساوه چې که دوى ٢سوه تړونونه هم له خپلو اجيرانوسره لاسليک اوګټي جرګې اومرکي جوړي کړي ، نه به يې افغان مسلمان ولس منلوته تيارشي اونه به هم امريکايان اوددوى ګټې دسکون اوخوندي توب ساه واخلي ،ځکه دتيرو ١٣ کلونوپه اوږدوکې افغانانودامريکايانوخيره اوخواخوږي !له نيږدي وليدله اوترټولومهمه خبرداده چې امريکايانودوه نيم لکه افغانان شهيدان کړل او دوه ميلونه يې شکنجه کړل ، افغانان دنړۍ پرمخ هغه قوم اوولس دى چې ترخودښمن اوقاتل ورته توبه ګارشوي وي نه وي اويايې انتقام ترينه اخيستى نه وي خوب په ځان حرام بولي.

نوښه به داوي چې امريکايان دخوتنواجيرانوپه ډاډاوجاسوسي ونه غوليږي اوځانته په لوى لاس په افغانستان دمحوي اونابودى قبرونه کښندي ، کنه حال اوبرخليک به يې دتورخم هغه لمبې او لوخړي وي چې ښايي امريکايي سيارو به يې په زړه پوري ننداره کړي وي او دصحني جزيات اوژوندي شواهد به يې په شداومدپه خپله حافظه کې درج کړي وي !!؟

## غوره ويناوې

آموختن علم شرعی و تأثیر آن بر متعلم:

قال الإمام الشّافعيّ رحمه اللّه تعالى: «من تعلّم القرآن عظمت قيمته، ومن تعلّم الفقه نبل مقداره، ومن كتب الحديث قويت حجّته، ومن تعلّم الحساب جزل رأيه، ومن تعلّم اللّغة رقّ طبعه، ومن لم يصن نفسه، لم ينفعه علمه».

امام شافعی رحمه الله فرمودند: «هر کس قرآن بیاموزد ارزش و قدر وی بالا می‌رود، و هر کس فقه بیاموزد تواناییش زیاد می گردد، و هر کس حدیث بنویسد (و حفظ کند) حجت و برهانش قوی می‌شود، و هر کس علم حساب فراگیرد رأی و نظرش محکم می‌شود، و هر کس ادبیات بیاموزد طبع و سرشت وی نرم و لطیف می‌شود، و هر کس نفس خود را محفوظ ندارد علمش سودی برایش ندارد». «أدب الدنيا والدين للماوردي» (٢٨).

## د قرآن کريم حفظ:

يو زلمي له واده وروسته غوښتل ناوې يې هم دده په څېر د قرآن کريم حفظ وکړي، ناوې يې په مينه غوښتنه ومنله او له نوموړې يې د قرآن کريم د حفظ درس پيل کړ، يوه ورځ زلمي په کور کې د يو شي لټه کوله نو يو داسې بکس يې ترسترګو شو چې پخوا يې نه وليدلى، له پرانستلو وروسته يې وليدل چې په بکس کې د قرآنکريم د حفظ شهادتنامې دي او د نوموړې د پېغلي نوم پکې ليکلى دى.

په حيرانتيا سره يې له مېرمنې وپوښتل چې ولې دې زه پخوا نه خبرولم چې ستا قرآن کريم يادى دى؟ مېرمنې يې ځواب ورکړ چې : ما غوښتل ستا له خولې يې بيا واورم، دا ځل يې له تا زده کړم، که مې نيمګړتيا لرله، سمه به يې کړم، او که نه وه، ډاډ به راکړې او دا چې ته مې استاذ شې؛ نو دواړه به يو ځاى جنت ته لاړ شو.

الله دې هر زلمي ته داسې ديندراه مېرمنې ورکړي .

د نوميالي مجاهد شهيد

# ډاکټر نصير الدين حقاني ژوند ته کتنه

## شهادت

ژوند يو الهي امانت دی ، لکه الله تعالی چې فرمايلي دي ، دانسان خلقت هسې بې هوده او بې هدفه نه دی او نه ورته دژوند نعمت ، عقل ، حواس او دبدن اعضاء هسې بې هدفه عطاء شوي دي ، بلکې دا ټول څه دالله تعالی له لوري امانات دي ، ترڅو يې مکلف بنده يوازې په هغه څه کې مصرف کړي ، چې الله تعالی يې ورته لارښوونه کړې ده .

انساني نفس ډيرلوړ قدر او منزلت لري ، چې بايد هسې مفت اود ټيټو اهدافو لپاره ضايع نه شي ، دانسان ژوند له الهي رضاء پرته له بل هرڅه بې ارزښته ده ، همدا وجه ده چې له الهي رضا پرته دبل هدف لپاره عمر تيرول يا ژوند له لاسه ورکول ، دالهي نعمت ناشکري بلل کيږي.

څرنګه چې دامانت رعايت او دنعمت شکرګذاري له لوړو حسنه صفاتو څخه ګڼل کيږي ، همدا وجه ده چې دالله تعالی په لاره کې عمر تيرول او په پوره امانتداری سره همدا لوی الهي نعمت ( ژوند ) خپل انعام کوونکي ( الله تعالی ) ته سپارل په ديني لحاظ له خورا محبوبو اعمالو څخه ګڼل کيږي.

دالله تعالی په لاره کې ژوند قربانولو ته شهادت وايي ، هغه څه چې الله تعالی يې مرګ نه بولي ، بلکې يو داسې عاليشانه ژوند يې بولي چې دانسانانو کمزوري عقول يې نه شي درک کولای ، داهماغه ژوند دی ، چې خيرولدآدم محمد مصطفی صلی الله عليه وآله وسلم يې بيا بيا تمنا کړې ده ( لوددت أن أغزو في سبيل الله ثم أقتل ثم أغزو ثم أقتل... الی اخره ) دا

هماغه ژوند دی چې دالله تعالی ترټولو محبوب بندګان لکه پيغمبران عليهم السلام ،صحابه کرام ،تابعين ،صديقين ، اولياء، مجتهدين، مجاهدين اوعلماء يې دبرخمن کيدووياړ لري

که دشهادت په فلسفه ، اخروي او دنيوي حيثيت باندې خبره کوو شايد دامبحث مو ډير اوږد شي ، راځئ دهمدې ستر وياړ ديوه وياړمن ، دهمدې ستر نعمت ديوه برخمن او دهمدې سعادتمند سفر ديوه مسافر په ژوند او کارنامو سره وغږيږو.

دلته به هغه شهيد سره وپيژنو چې نه يوازې خپله دشهادت په لوړه درجه فائز شوی بلکې دکورنۍ لسګونه غړي يې په تيرو څو کلونو کې دشهادت له سعادته برخمن شوي دي ، دشرقي او غربي فرعونيت دځغلوونکي مولوي جلال الدين حقاني دسترګو تور ډاکټر نصير الدين حقاني دريادوو چې څه موده وړاندې يې دشهادت جام غړپ کړ.

## شهيد ډاکټر نصيرالدين حقاني

ډاکټر نصيرالدين حقاني دستر مجاهد مولوي جلال الدين حقاني مشر زوی وو ،چې په ۱۳۵۲ هـ ش کال کې دپکتيا ولايت د وزي ځدراڼ ولسوالۍ دکنډو په کلي کې دنيا ته راغی ، نوموړي دپښتنو دځدراڼ قوم دميزايي قبيلې له سلطان خيلو قوم سره تعلق درلود ، نوموړی دخپل پلار مشر زوی وو ، چې په يوه ديندار او علم دوسته کورنۍ کې يې نړۍ ته سترګې غړولې وې . نصيرالدين حقاني ديوه کال په عمر وو ، چې په افغانستان کې کمونيستانو کودتا وکړه ، او دقدرت په واګو يې قبضه ټينګه کړه ، په دې مهال دنوموړي پلار مولوي جلال

الدین حقاني چې له وړاندې یې دکمونیستي افکارو په خلاف مبارزه پیل کړې وه ، خپل جهادي خوځښت یې علني کړ ، او دپکتیا او پکتیکا په لرې پرتو سیمو کې یې دکمونیستي رژیم په خلاف نظامي عملیات پیل کړل.

دکمونیستي ستم او شوروي یرغل څخه دنجات په خاطر دافغان اولس د سرتاسري هجرت په مهال دحقاني صاحب کورنۍ هم له ډیورنډ پولې دپاکستان خواته واوښته او د شمالي وزیرستان په میرانشاکې یې هستوګنه پیل کړه ، نصیرالدین حقاني خپلې دیني لومړنۍ او ثانوي زده کړې په جامعه دارالعلوم منبع الجهاد کې ترسره کړې او دحدیثو دوره یې هم همدلته ولوستله، عصري زده کړې یې تر دولسم ټولګي پورې په انجمن القرآن عالي لیسه کې ترسره کړې او بیا دکانکور له ازموینې وروسته په بریمنه توګه طب پوهنځی ته لاړ، خو دامریکایي یرغل له امله دطب په برخه کې زده کړې ترې نیمګړې پاته شوې.

نصیرالدین حقاني د ډیر کم عمر وو چې له خپل مجاهد پلار سره دکمونیستانو په خلاف دجهاد سنګرونو ته تلو ، نوموړی په جهادي چاپیریال کې رالوی شو ، دخپل مجاهد پلار دلارښوونو او تربیې په سیوري کې یې وده وکړه ، او همدا لامل وو چې دژوند ترپایه دنه ماتیدونکي او سرلوړي مجاهد په موقف کې پاته شو. ډاکټر نصیرالدین حقاني چې دیني او عصري علوم یې په موازي توګه تعقیب کړې او ترلاسه کړي وو ، الله تعالی ورته ستر علمي استعداد ورکړی وو ، نوموړی له مورنۍ ژبې پښتو پرته په څلورو نورو ژبو ( عربي ، فارسي ، اردو او انګلیسي ) باندې روان غږېده.

دامریکا په خلاف دافغان اولس دجهاد له پیل سره ډاکټر نصیرالدین حقاني دیوه فعال ، اغیزمن او متحرک جهادي مشر په صفت دامریکایي یرغلګرو په خلاف جهاد ته ادامه ورکړه ، نوموړی چې په دې ټوله موده کې یې داسلامي امارت په رهبري شوراکې دمشر حقاني صاحب په نیابت غړیتوب درلود ، دجهادي تشکیلاتو په بیلابیلو نظامي او ملکي برخو کې یې خپل خدمت ته ادامه ورکوله ، ترڅو په ۲۰۱۳/۱۱/۱۱ میلادي نیټه دډارن دښمن په یوه تروریستي برید کې دشهادت لوړ مقام ته ورسید . انا لله وانا الیه راجعون

### دډاکټر نصیرالدین په شهادت غبرګونونه

دډاکټر نصیرالدین حقاني له شهادت وروسته دنوموړي دشهادت په اړه بیلابیل غبرګونونه څرګند شول ، که له یوې خوا د خواخوږۍ پیغامونو دنوموړي سره د مسلمانانو دمینې څرګندونه کوله ، له بلې خوا دډښمن لخوا شویو اظهاراتو او تبصرو څرګنده کړه ، چې نوموړی ترکومه دډښمن دسترګو اغزی او دنړیوال کفر په وړاندې اغیزمن مجاهد وو .

دډاکټر نصیرالدین حقاني دشهادت په اړه لومړنی پیغام داسلامي امارت د رهبري شورا وو ، درهبري شورا په تسلیتي پیغام کې لولو (په ډیره خواشینۍ سره خبرشولو چې داسلامي امارت درهبري شورى غړي وتلي جهادي اوعلمي شخصیت محترم مولوي جلال الدین حقاني صاحب حفظه الله مشرزوی )ډاکټرنصیرالدین حقاني تقبله الله)د دښمن په یوناځوانمردانه تروریستي برید کې په شهادت ورسید. اناللهوانااليه راجعون

اسلامي امارت د ډاکټرنصیرالدین حقاني رحمه الله دشهادت له امله د نوموړي والد(داسلامي امارت درهبري شورى غړي جهادي او علمي شخصیت محترم مولوي جلال الدین حقاني حفظه الله ) ، وروڼو ، د نوموړي درنې کورنۍ او د اسلامي امارت ټولو مجاهدینو ته د تعزیت او تسلیت مراتب وړاندې کوي، څرنګه چې نوموړي د جهاد په لاره کې خپل روح خپل خالق او مالک جل جلا له ته سپارلی ، د الله تعالی له دربار څخه ورته د فردوس جنت غوښتنه کوي ، دغه راز یې قریبانو ته هم له اللهي دربار څخه جمیل صبر او عظیم اجر غواړي. د جهاد په لاره کې د نوموړي هلې ځلې دزیات قدر وړ وې ، شهید ډاکټر نصیرالدین حقاني رحمه الله دخپل ژوند ترپایه د اشغال په وړاندې د مبارزې په میدان کې پاتي شو ، چې دښمن د ده میړانه او د جهاد په لاره کې فعالیت نشوای برداشت کولای ، واقعا د نوموړي شهادت د اسلامي امارت او ټول افغانستان لپاره لویه ضایعه ده )

د ډاکټر نصیر الدین حقاني له شهادت وروسته دښمن هم دې مسئلې ته پراخ مطبوعاتي انعکاس ورکړ او دایې ستره بریا وبلله ، دازادې اروپا په نوم دامریکا ځانګړې یرغلګرې راډیو چې په پښتو ژبه دازادۍ راډیو په نامه فعالیت کوي او دامریکا دحکومت رسمي نظر خپروي ، وویل چې نصیرالدین

حقاني د حقاني صاحب د جهادي تشکیلاتو ستون فقرات ( د ملاتیر ) او مبتکر مغزوو ، چې بیلابیلې نظامي او مالي چارې یې سمبالولې ، دښمن د نوموړي شهادت لویه لاسته راوړنه وبلله ، خو مجاهدینو په غبرګون کې وویل چې د نوموړي ځای تش نه دی بلکې لاره به یې وپالل شي.

په دې اړوند د شهید ډاکټر صاحب پلار نومیالي مجاهد مولوي جلال الدین حقاني د مطبوعاتو له لارې یو داسې پیغام نشر کړ ، چې ټول د ردمن زړونه یې ټکور کړل ،دا اعلامیه چې له جملو او کلماتو یې د ایمان او توکل علی الله بخري اوري په لاندې توګه ده.

## د مشر زوی په شهادت د مولوي جلال الدین حقاني ځانګړی پیغام

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا - الاحزاب ۲۳-

د افغانستان مؤمن او مجاهد ولسه او له صلیبي یرغلګرو سره جنګیدونکو مجاهدینو!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته .

تر هرڅه له مخه عالیقدر امیر المؤمنین حفظه الله ، سربښندونکو مجاهدینو او خپل ځان ته د جهاد او سربښندنې دلارې دیوه سربښندونکي مجاهد ، شهید نصیرالدین )حقاني) د شهادت تبریکي وایم ، الله تعالی دې نوموړی په خپل دربارکې د شهیدانو ، صدیقینو او صالحینو په جمله کې قبول کړي.

وروڼو !د الله تعالی په لارکې شهادت هغه لوړ افتخار دی چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له خپل ټول افضلیت او لوړمقام سره سره د هغه غوښتنه کړې او په مبارکو احادیثو کې د شهید ستر مقام ستایلی

شهادت یو ځانګړی ویاړ او سعادت دی چې یوازې د الله تعالی مخلص بنده ګان ورباندې ویاړل کیږي ، شهادت فضیلت دی چې د جهاد د لارې د غوره مجاهدینو په نصب کیږي او بالاخره شهادت په معنوي لحاظ د مجاهد موفقیت دی چې د هغه په وسیله د څښتن تعالی د رضا مورد ګرځي او په بدل کې یې د جنت الفردوس په تلپاتي نعمتونو نازول کیږي.

مسلمان مجاهد ولسه ! نن چې زمونږ غیرتي مجاهدین له خپل هیواد څخه د دفاع په سنګروکې له یرغلګرو سره په مقابله لګیادي الله تعالی د هغوئ د شهادتونو او قربانیو له وجې په دغې تاریخي مقابلې کې ډیر ستر فتوحات ورپه برخه کړي ، داسې فتوحات چې مغرور دښمن یې له خپل ټول پوځي او تخنیکي ځواک سره سره سخت وارخطاکړی ، د تیښتې لاره یې ترې ورکه کړې او نړیوال وجاهت یې تر پښو ورلاندې کړی.

وروڼو !دجهاد لاره د قربانیو او سربښندنو لاره ده ، د جهادي قربانیو دغه لړۍ د احد په تاریخي غزاکې د حضرت حمزه رضی الله عنه له شهادته پیل او د ځوارلسو سووکلونو په تیریدو سره لا همداسې جاري ده ، شهید ډاکټر نصیر هم د اسلامي نظام د حاکمیت او د خپل ګران هیواد دازادۍ په مبارزه کې د دغې ویاړمنې لارې یولاروی وه چې بالآخره خپل آرمان ته پکې ورسید ، الله تعالی دې شهادت قبول کړي .

شهید ډاکټر نصیر زمونږ د کورنۍ نه لومړنی شهید اونه به اخرنی شهید وي ، بلکې د حقاني ټوله کورنۍ د جهاد او شهادت کورنۍ ده ، د الله تعالی د نظام د تحکیم او د هیواد له حریم نه د دفاع په لاره کې یې شهادت تر ټولو ستر آرمان دی، ماته خپله د هیواد د هرشهید په شهادت کیدو دا غبطه راځي چې کاشکې دغه د شهادت تاریخي ویاړ زما په برخه شوی وای ، ما د خپل فاني عمر ډیره برخه په دې آرمان کې تیره کړې چې کله به مې د شهادت افتخار په برخه کیږي ، الحمد لله مونږ اوتاسو مسلمانان یو ، او مسلمانان د خدای په لارکې شهادت دومره خوښوي لکه کافران چې د دنیایي ژوند خوندونه او نعمتونه خوښوي

مسلمانو افغانانو او ګرانو مجاهدینو !زمونږ غیرتي ولس له تیرو دری نیمو لسیزو راهیسې په خپل هیواد کې د اسلامي نظام دتحکیم په غرض قرباني ورکوي ، د هغوئ سربښندنې او د جهاد په لاره کې توي شوې مبارکې وینې ډیرې قیمتي دي ، مونږ تاسو ټول باید د هغوئ د وینو درناوی وکړو او د هغوئ د وینو او شهادتونو درناوی په دې سره کیږي چې مونږ د الله تعالی د نظام د تنفیذ او اسلامي سپیڅلیو احکامو پیروي وکړو ، د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد حفظه الله په مشرئ جهادي

صف مو متحد وساتو ، دخپلو مشرانو اطاعت وکړو او دخپل ځوریدلی ولس د آرامی او سوکالی لپاره کار وکړو.

ورونو !له کافرانو سره دمقابلې په صف کې زمونږ د مجاهدینو شهادت زمونږ دکامیابي لامل دی نه زمونږ دناکامي لامل ، زمونږ د ناکامي لامل به زمونږ انحراف او د شهیدانو له مبارکو وینو سره خیانت او تفرق وي چې الله تعالی دی مونږ او په مجموع کې ټول اسلامي امت له دغه مهلک خطر څخه وژغوري. والسلام

مولوي جلال الدین حقاني
۱۳۹۲/۸/۲۲هـ ش ـ ۲۰۱۳/۱۱/۱۳م

## د شهید ډاکټر نصیر الدین دشخصیت په اړه

لکه عرب چې وایي (الولد سر أبیه ) نصیرالدین حقاني هم دظاهري جوړښت ، شخصیت ، فکر او کردار له اړخه دخپل مجاهد پلار مولوي جلال الدین حقاني صاحب ژوندی مثال وو ، نوموړي ته الله تعالی خورا ښایسته ، جذابه او له شوکته ډکه قیافه ورکړې وه ، د سیرت له اړخه خورا متواضع او خاکسار سړی وو ، چې هر چا یې په لومړني مجلس کې د تواضع صفت درک کولای شوای.

د اسلامي امارت د رهبري شورا یو تن غړي چې له شهید ډاکټر صاحب سره نږدې وسیدلی دی ، دنوموړي دشخصیت په اړه راته وویل ( ډاکټر صاحب په مجالسو کې همیشه په ډیره حوصله او پاخه استدلال سره خپله خبره وړاندې کوله ، چې څوک به دعمر له لحاظه پرې مشر وو ډیر ادب یې ورسره کاوو ، ډیر مؤدب او محترم وو ، د سیرت په ښکلاوو سربیره الله تعالی ښایسته صورت او ځواني هم ورښیلې وه ، ژبه به یې همیشه د الله تعالی په ذکر لمده وه ، له بې وزلو سره مرسته او سخاوت یې همیشني عادت وو له فرضي عباداتو نه علاوه یې همیشه نفلي عبادات هم کول ، سره له دې چې خوشطبعي یې عادت وه ، خو په مهمو مسئلو کې یې ښه جدیت درلود او له مسائلو سره یې سطحي چلند نه کاوو.

**حقاني کورنۍ یوه دغبطې وړ مجاهده کورنۍ**

ډاکټر نصیر الدین حقاني دحقاني کورنۍ وروستی شخص دی ، چې دنړیوال کفر دبرید هدف ګرځي او دشهادت لوړ مقام ته رسیږي ، که څه هم دنوموړي شهادت دجهادي صف لپاره لویه ضایعه ده ، خو ددوی دکورنۍ لپاره شاید دشهادت داپیښه کومه فوق العاده او غیرمترقبه پیښه ونه اوسي ، ځکه دحقاني صاحب کورنۍ چې تراوسه کوم کردار ثابت کړی دی ، نو دافغانستان او اسلامي نړۍ په سطحه د غازیانو او شهیدانو یو منحصر به فرد خاندان ورته ویلی شو ، چې یوازې یې دامریکایي اشغال په تیرو ۱۲ کلونو کې دنارینه ، ښځینه ، ماشومو او مشرانو شهیدانو تعداد **۵۸** تنو ته رسیږي .

## دشاعر خبره

چې په برج یې بله ځنبته نه ځاییږي
شهادت مو تر اسمانه پورې دنګ دی

دا یوازې امریکایي کفر نه دی چې مقابلې ته یې دې کورنۍ دشهیدانو لښکر وړاندې کړی ، بلکې تردې پخوا د شوروي فرعونیت په وړاندې هم دجهاد په مهال دې کورنۍ ګڼ شمیر شهیدان ورکړي دي.

دا کورنۍ له دې اړخه هم فوق العاده او دغبطې وړ مجاهده کورنۍ بلل کیدای شي ، چې یوازې له یوه کوره دپنځو تنو نومونه یې د کفري ښکیلاک په تور لیست کې شتون لري.

مولوي جلال الدین حقاني چې د۲۰۰۱ لومړي کال د جنورۍ په ۳۱ مه یې اسلامي نظام ته دوفادارۍ او کفر ته دسر نه ټیټولو په جرم نوم دکفارو په تور لیست کې ولیکل شو .

سراج الدین حقاني چې د ۲۰۰۷ م کال دسبتمبر په ۱۳ یې نوم تور لیست ته داخل شو . ډاکټر نصیر الدین حقاني چې د ۲۰۱۰ م کال د جون په ۲۰ یې نوم تور لیست ته داخل شو .

دحقاني صاحب ورور حاجي خلیل حقاني چې د ۲۰۱۱ م دفبرورۍ په ۹ مه یې نوم تورلیست ته داخل شو . شهید بدرالدین حقاني چې د ۲۰۱۱ م کال دمی په ۱۱ مه یې نوم په تور لیست کې ولیکل شو .

امریکایي زبرځواک نن سبا دبشري نړۍ یوازینی زبرځواک بلل کیږي ، چې دخپلې یکه تازۍ په اوج کې هیڅوک ددښمن په صفت نه شي زغملی ، او پرلپسې هڅه کوي چې دنړۍ په وچو او بحرونو باندې خپله ولکه ټینګه کړي ، امریکایي زبرځواک دخپلې استدراجي ټیکنالوجۍ ، نړیوال ملاتړ ، تاثیرګذارې او اقتصادي قوت په مټ داسې مرحلې ته رسیدلی چې حتی پخواني نړیوال سیالان او اتومي ابرقدرتونه هم ورته دتسلیم سرونه ټیټوي او برلاسي یې په رسمیت پیژني، مګر دا چې دهمدې زبرځواک په مقابل کې دافغان اولس دنورو مجاهدینو او پرګنو غونډې حقاني کورنۍ پرلپسې مقاومت ته دوام ورکوي ، ددښمن هیڅ پوځی فشار ، تبلیغات ، رواني جنګ او بریدونه یې عزم نه شي متزلزل کولای ، له دې څخه ښکاري چې دمشر حقاني صاحب دپاک جهاد او مخلصانه موقف له برکته الله تعالی دوی ته خورا ستر استعداد ، قوي ایمان او عزم ورنصیب کړی دی ، ځکه تردې حده قرباني ورکول او استقامت دانساني قاصر طاقت دتوان خبره نه شي بلل کیدای ، ترڅو چې فوق العاده الهي نصرت او انعام ورسره مل نه وي

په پای کې دیادونې وړ بولو چې د ډاکټر نصیر الدین په شهادت سره دښمن باید دافکر ونه کړي ، چې کومه لویه بریا یې ترلاسه کړې ده او جهادي صف یې له تلپاتې زیان سره مخامخ کړ ، دښمن باید په یاد ولري ، چې شهادت زموږ دلارې هغه منزل دی چې هر مجاهد یې تمنا لري ، دشهید وینه داسلام ډیوې ته د تیلو حیثیت لري ، د شهید زخم دمبارزې په تورو تږمیو کې درڼا او ځلیدونکي مشال رول لوبوي ، په شهادت سره مجاهدین کمیږي نه بلکې نور هم زیاتیږي ځکه دا الله تعالی په لاره کې دسر یا مال انفاق څو برابره زیاته نتیجه لري.

نو بناء موږ ایمان لرو چې د ډاکټر نصیر الدین حقاني په شهادت سره به دجهاد صف کمزوری نه شي او نه به حقاني کورنۍ بې څوکه شي ، بلکې الله تعالی به د نوموړي نعم البدل پیدا کوي ، ترڅو په ښه شان دنوموړي جهادي لاره وپالي.

(رحمه الله تعالی )

# دغمونو کاروان

عرفاني

دغمونو کاروانونه راروان دي
سترې ستونزې تکلیفونه راروان دي

دهر چا ستر ګې دي ډکې له ژړانه
جنازې دي تابوتونه راروان دي

ظالمان مو تویوي معصومې وینې
څه دسرو وینو موجونه راروان دي

په اسمان کې تندرونه بیا غړمیږي
زلزلې او توفانونه راروان دي

زیړ ګلان مو داجل تبې نیولي
دخزان ساړه بادونه راروان دي

افغانانو ځان سختۍ سره بلد کړی
دېنه سخت انقلابونه رراوان دي

مجاهده سپینې لارې نه وانه وړې
سترې لارې کږلیچونه رراوان دي

راشه راشه درڼاو سپین امامه
تږمۍ او تور تمونه رراوان دي

عرفاني دزړه له درده غزل لیکم
زنځور زړه ته مې دردونه رراوان دي

# دغزني ولايت دښوونې اوروزنې مسؤل له څرک سره په مرکه کې:

# زمونږ تعليمي نصاب په ټولو تعليمي مراکزو کې مجاهدين عملي کوي

مرکه کوونکي – قاضي صابر ( هوتك )

**پوښتنه** : محترم مولوی صاحب که د څرک مجلې قدرمنو لوستونکو ته ځان وروپیژنئ ؟.

**ځواب** :- الحمد الله وكفىٰ وصلوةٌ وسلام على من لا نبی بعده ! اما بعد ! فاعوذو باالله من الشيطن الرجيم، بسم الله الرحمن اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ١ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ ٢ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ ٣ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۴ تر ټولو ړومبی د ستاسو قدرمن حضور ته او ستاسو له لاری ټولو مجاهدينو ته سلامونه او احترامات وړاندې کوم زما نوم مولوی شهاب الدين ((ثاقب)) د غزنی ولايت د ښوونی او روزنی د مسؤول په صفت کار کوم

**پوښتنه** :- که د غزنی ولايت د ښوونې او روزنې په اړه په لنډه توګه معلومات راکړی ؟

**ځواب** :ـ ستاسې د پوښتنې د پوره ځواب په اړه بايد ووايم چې دغزنې په ولايت کې د مرکز په شمول (۱۳۰) باب دينې مدرسې چې (۴۴۸) ليليه او (۲۷۸۲) تنه نهاري طالب العلمان د دينې علوموزده کړه کوي. همدارنګه دغزنې په ولايت کې (۵۷۲) باب دارالحفاظونه چې (۱۵۰۰۰) څخه زيات ماشومان دقرآن کريم ناظره ، او حفظ کوي. اوبايد ذکرکړم چې دغزنې په ولايت کې (۳۶) ابتدائي –(۳۰) باب متوسطې او (۲۸) باب ليسې فعالې دي چې په مجموعي توګه ( ۸۴۱۴۰ ) تنه زده کونکي دعصري علوموزده کړې کوي. ( ۹۳ ) باب کليوالي مدرسې چې دطالب العلمانو شمېر يې ( ۲۲۱۳ ) تنوته رسېږي دامامانو ، علماء کرامو ، مدرسينو او عصري علومو دښوونکو لخوا تدريس کېږي. چې په نوموړو مکاتبو په سلو کې (۹۰) فيصده لله الحمد زمونږ د مستقيم اثرلاندې دي ، اود اسلامي امارت دښوونې ، او روزنې ټول مقررات اوظوابط عملي کوي.

**پوښتنه** :ـ آياه په تعليمی چاروکې د ښوونيز نصاب عملی کول تر ټولو تدريسي چاروضروری بولی ؟ علت يې څه ده ؟

**ځواب** :ـ په ښوونيزو چاروکې نصاب يو ضروری آمر ګڼل کيږی. او د ښوونی او روزنی کميسون زيصلاح مقام يې عملی کولو ته جدی پاملرنه کړې ده. ځکه دا خبره د ټولو هيواد والو برسيره ټولو نړيوالو ته معلومه ده چې زمونږ د هيواد ښوونيزو نصاب د دری لسيزو راپدې خوا د روسی او بيا د غربی اشغالګرو لخوا ډير متضرر شوی دی او آن تردې چې اصلي بنه يې له منځه تللې ده. نو پدی خاطر ښوونيز نصاب را ژوندی کول ، اودنوي ځوان نسل تربيه کول په يوه اسلامي او سپېڅلې سالمه عقيده يو ضروری امر ګڼل کيږی.

**پوښتنه** :ـ ستاسو په آند غربی اشغالګرو زمونږ ښوونه او روزنه څومره د خپل اثر لاندی راوستلې ده ؟

**ځواب** :ـ پدی کې شک نشته چې اشغالګرو زمونږ په خاوره د نامشروع جګړو، اوتېريو په مخه نه يوائې زمونږ مسلمان ، او مجاهد ملت د مېړنيو ځوانانو شهيدان کول دی . بلکی په ښوونه او روزنه يې هم حمله کړې ده . چی يو لنډ مثال يې د دوه ميليونو څخه د زياتو شهيدانو وارثانو ته په

لومړنيو ټولګيو اوآن ترثانوي دورې پورې د قرآن عظيم الشان د تدريس او زده کړې په عوض د موسيقي په نوم مضمون ته ځای ورکړل شوی. نورغير مثمر مضامين لکه دحرفه، هنر، فرهنګ، اوداسې نورومضامينو ته يې ځای ورکړي دي.چې دانامعقوله، اونامشروع لاسوهنه نه يواځې زمونږ دځوان نسل دوخت ضائع کول دي بلکې په عملي، اوتدريسي چاروکې د دوې په حق تېرې، اوله انساني، اوبشري کرامت څخه ډېر لرې کار دي. چې نتائج يې هم مثبت ندي اريابې شوي. داسې ډېر مثالونه يې نورهم موجود دي .چې په مناسب، اولنډ وخت کې به انشاء الله ستاسو دخپرونو له لارې نشرته وسپارل شي.

**پوښتنه**:ـ آيا ستاسو مسؤلين د غلامي اداري د ښووني او روزنې د مسؤلينو سره څه اړيکې لري؟

**ځواب**:ـ نه...... دښمن دښمن ده. هغه که په نظامي چارو کې وي. او که په ملکې او يا هم قضايي ادارو کې مونږ د خپلو مديرانو او د هغو مجاهدينو ورونو په مټ چې د کفری يرغلګرو پر ضد د خپل ايمان او سپيڅلې عقيدې له مخې د مسلحانه جهاد ترڅنګ دخپلو علمي استعدادادونو له لياری د قلم په ځوکه جهاد کوی خپل کارونه پرمخ بيايو او د نظامي مجاهدينو ترڅنګ د هغوی نه سترې کيدونکي قربانی ستايو.

**پوښتنه**:ـ ايا-ستاسو مديران څنګه کولای شي چې د غلامي اداری د عمومي مرکزونو سره نژدې خپل نصاب عملي او د هغه څارنه وکړې؟

**ځواب**:ـ څرنګه چې افغان ملت يو مجاهد ملت دي، په هرکور، اوکورنۍ کې يې بااحساسه، اوباهمته مجاهدين روزلې دي، نو زمونږ مديران د هغو مجاهدينو په مټ کولای شي چې په ډېر متانت او ميړانه د ښوونيز نصاب د عملي کولو ټولې چارې وڅارې.

**پوښتنه**:ـ آيا تاسو د ښوونيز نصاب څخه خومره راضي ياست.؟

**ځواب**:ـ څرنګه چې افغان ملت يو مسلمان ملت دی. او زمونږ ښوونيز نصاب د هيواد د جيد و علماؤ، مشائخ کرامو، مدرسينو او تجربه لرونکو ((علمي بورډ)) علماؤ په مټ دوخت دټولو مشکلاتو او د طالب العلمانو د علمي ضرورت په نظر کې نيولو سره په يوه اسلامي بنياد ترتيب شوی ده. نو هرمهتمم، مدرس او طالب العلم يا د عصری علومو ښوونکي اوزده کوونکي ته پوره د منلو وړ ده.

**پوښتنه**:ـ آيا د ښووني او روزنې د نصاب په عملي کولو کې ستاسو مسؤلين د مشکل سره مخ شوی دی؟

**ځواب**:ـ ما په ړومبی سوال کې وويل چې دښمن دښمن ده. د ښووني او روزني مسؤلين د نظامي مجاهدينو ترڅنګ هره لحظه د زندان او شهادت له تهديد سره مخ دی. شهيدان شوی. اسيران شوی، مګر مايوسه او بيرته پاتی شوی ندی. د دښمن مقابله به يادتورې په ځوکه، او يابه هم دقلم په ځوکه کوي. (انشاء الله)

**پوښتنه**:ـ تاسی دغزنی په ولايت کې د ښوونی او روزنی د لايحی او نصاب په عملی کولو څومره راضی ياست.؟

**ځواب**:ـ لله الحمد د لوی خدای ﷻ په نصرت مونږ د غزنی ولايت د مسؤلينو څخه د خپلو ور سپارل شويو دندو په اړه د اجرآتو څخه ډير زيات راضی يو. او ددوی د فدا کاری او خلوص په نتيجه کې مطمئن يو. او پدې توانيدلی يو تر څو ستاسو له لاری خپل کارونه او فعاليتونه په مياشتنيو مجلو کې د مسلمان مجاهد ملت د لا زياتو معلوماتو د حاصلولو په خاطر نشر ته وسپارو.

په آخر کې محترم مولوی صاحب دا چې تاسی د ډيرو مصروفياتو سره، سره زمونږ سره مرکې ته حاضر شوی له تاسی څخه يوه نړۍ مننه. الله مو نوری علمی برياوی هم دجهادي برياوترڅنګ په نصيب کړه.

لتاسو څخه هم ډيره مننه او شکريه چې قيمتی وخت مو مونږ ته راوبانبه او زمونږ سره مو مرکه وکړه

# دسولي په نامه مختلط رقص !!

خليل-ع

که دغرب او هندوستان دغه اشغال اوغوبل روان وو اودمشروعيت لپاره يې اجيري جرګي اودکابل بې ضميره واکمن برسراقتداره وه ، نوله خپل دين او فرهنګ سره به دخيانت اوغداری عجيبي اوغريبي صحني اوپيښي وينو !!

دګډا ، فحش اوبې ديني دخورولولپاره نورې تولې پلمې اونادودي پای ته ورسيدي ، تنهادسولي په نامه ابتذال اوډرامه پاتې وه چې دغرب اوهندوستان لوچکانوورته رقص اوفحشاسرته نه وه رسولې ؛چې بالاخره يې دليندۍ په ۲۸ نيټه دبابرپه باغ کې د( سولي کنسرت ) ترنامه سوونوراتول شووفساقوچې نراوښځي پکې شاملي وي په دې پلمه چې دوی نور سوله اوروغه غواړي دکنسرت په يوې برخي کې په مختلط ډول راپورته شول اولکه ديوه غربي کلپ په څير يې رقص اوګډاترسره کړه !!!

په دې خبره هرڅوک پوهيږي چې ددغه کنسرت جوړونکي اوبرخوال يوهم په دې فکراوسوچ کې نه وواو نه دي چې افغانستان دسولي اوروغي مخ ووينې ، ځکه سوله اوروغه به هلته راځي چې ددوی اربابان ( امريکايان ) دافغانستان استقلال ته درناوی وکړي ، داشغال اووحشت لمن يې توله شي اوافغانان پريږدي چې په خپل هيواد کې يوه سوچه اسلامي نظام راولي ،که چيرې داسې وشي نوله شک پرته به بياددغه غربي اومجوسي فرهنګ اوحيواني کلچرمحوه اونابودي راځي اوځای به يې اصيل افغاني فرهنګ نيسي اوهغه چاچې داسلامي فرهنګ اوافغاني روایاتوپه حق کې غداری سرته رسولي اورومروبه دعدالت ميزته راکش کيږي ، نودا استعماردغه ګوډاګيان په هيڅ بيه هغه سوله چې افغان مجاهدولس يې تمنالري نه غواړي ، بلکې مهم هدف يې له پلمواوشعارونوڅخه يواځې دافغانانوپه منځ کې دنووبيدينيورايجول اوخلک ورسره عادي کول دي.

يوتن ژورناليست چې همدغه کنسرت ته ورغلی وو خپل دسترګوليدلی حال اوبرداشت يې داسې بيان کړي:

لمرپه لويدو و چې دسولي کنسرت ته وررسيدم ، سخت امنيتي تدابيرورته نيول شوي وو ، له نارينه څخه دښځوشميرزيات معلوميده دماښام اذان ته به ايله لس دقيقي پاتي وي چې کانسرت شروع شو ، کله چې دکانسرت ځای ته نيږدې په يوجومات کې داذان کلمات پيل شول او ښه اوچت غږيې راته ، زماخپله په زړه کې داخبره راوګرځيده چې داذان په احترام خوبه يوڅولحظې کانسرت خاموشه کړي ، ځکه کانسرت روان په داسې يوې خاورې کې دی چې داسلامي مقدساتو په ارمان يې نيږدې دوه ميلونه قرباني نذرانه کړي ، خو کانسرت داذان په مهال نور هم زورواخيست ، بيامادافکروکړچې کيدای شي اذان ته متوجه نه وي او نه يې اوري ، خو داذان په منځ کې يوې رقاصي داعلان وکړ (که وقت نمازمغرب شدکسانيکه ميخواهد نمازبخوانند برايشان اجازه است ) بله دتعجب صحنه داوه چې يو شميرخلکو دکانسرت په منځ کې په داسې حال کې چې هندي سندره روانه وه څادرونه او ځای نمازونه اوارکړل اولمونځونه يې وکړل !!؟

په دې وخت کې مې ذهن ته داخبره پخه راغله چې دغه توله صحنه يو ډراماتيکه لوبه راته ښکاري چې هسې يې سوله اوروغه عنوان کړي ، کنه اصلي خبره همداده چې دکنسرت متدصيان اوبرخوال دغسې يوه سوله غواړي چې کفراواسلام پکې العياذالله علی السويه وي ، هم به اذان ويل کيږي اوهم به يې ترڅنګ غربي اوهندي کنسرت روان وي ، هم به سندري اوري اوهم به لمانځه ته ورته حرکات سرته رسوي ، ياپه بله معنا ، غربيان اوهندوستان غواړي چې دهرجومات ترڅنګ يوه کليسا اويوه دهندويزم معبدګاه موجوده وي ، خوالله دې دغسې حالت نه راولي اوهغه څوک چې په دې هڅه اوارمان کې وي ، ژرترژره دې له دې پاکي اومسلمان پروره خاوري څخه ورک اونابودکړي !!

# حاکم فقیر

نوشته: عبدالستار ع

۱- خلیفه‌ی دوم مسلمانان، حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه در زمان خلافت خویش، سعید بن عامر را به حکومت حمص گماشت. مدت زیادی از این ماجرا نگذشت که گروهی از اهالی حمص به نزد امیرالمؤمنین آمدند.

عمر رضی الله عنه به آنان گفت: اسامی تنگ‌دستان خویش را بنویسید تا از اموال مسلمانان به آن‌ها بدهم.

آنان نیز اسامی فقرایشان را برای عمر نوشتند که از جمله آن‌ها، سعید بن عامر بود.

عمر رضی الله عنه از آنان سوال کرد: سعید بن عامر کیست؟

گفتند: امیر (حاکم) ما! عمر گفت: حاکم شما فقیر است!

گفتند: بله، به خدا سوگند، روزهای طولانی بر وی می‌گذرد که در خانه‌اش آتشی برافروخته نمی‌شود.

عمر با شنیدن این سخنان لحظه‌ای گریست و سپس هزار دینار در کیسه‌ای گذاشت و گفت: این مال را به وی بدهید تا زندگی اش را با آن بگذراند.

۲- زمانی که گروه به حمص بازگشتند و کیسه را به سعید بن عامر دادند، سعید گفت: انا لله و انا الیه راجعون. گویا که مصیبتی بر وی وارد شده باشد.

همسرش از او سوال کرد: آیا امیرالمؤمنین وفات کرده است؟

گفت: نه، بلکه مصیبتی بزرگ‌تر واقع شده است. دنیا، برای فساد کردن آخرتم، به من روی آورده است.

گفت: خودت را از دستش رهایی بده.

و همسرش از قضیه‌ی دینارها چیزی نمی‌دانست.

گفت: من را بر این کار کمک می‌کنی؟

گفت: بله.

سپس همه‌ی دینارها را بر افراد فقیر مسلمانان تقسیم کرد.

۳- بعد از مدتی، عمر رضی الله عنه برای بررسی شهر حمص، به آن‌جا رفت و با ساکنانش دیدار نمود و از آنان در مورد امیرشان، سعید بن عامر، سوال کرد. آنان نیز به خوبی از وی یاد کردند، اما از سه کردارش که دوست نداشتند، شکایت کردند.

عمر رضی الله عنه سعید بن عامر را فراخواند و او را با اهالی حمص یک‌جا گرد آورد و گفت: از امیرتان چه شکایتی دارید؟

گفتند: او تا زمانی که آفتاب بالا نیاید، به نزد مردم نمی‌آید!

امیرالمؤمنین نگاهی به سعید کرد و از او خواست که پاسخ دهد.

سعید گفت: سوگند به خدا من ناگوار می‌دانم که علت آن را بگویم. همسر من خادمی ندارد، به ناچار من آرد را خمیر می‌کنم و صبر می‌کنم تا آماده شود و آن‌گاه آن را برایشان می‌پزم، سپس وضو می‌گیرم و به نزد مردم می‌آیم.

۴- سپس عمر گفت: چه چیز دیگری را از وی شکایت دارید؟

گفتند: او در شب جواب هیچ کس را نمی‌دهد!

سعید گفت: سوگند به خدا من ناگوار می‌دانم که این را نیز آشکار کنم. من روز را برای رسیدگی به امور آنان اختصاص داده‌ام و شب را برای خداوند عزوجل.

عمر گفت: دیگر چه شکایتی از او دارید؟

گفتند: او یک روز در ماه، با هیچ کس دیدار نمی‌کند!

عمر گفت: ای سعید! در این مورد چه می‌گویی؟

سعید گفت: من خادمی که لباسم را بشوید، ندارم و تنها لباسم همین است که بر تنم هست، در این روز آن را می‌شویم و منتظر می‌شوم تا خشک شود، سپس در پایان روز به نزدشان می‌روم.

در این هنگام عمر گفت: سپاس خدایی راست که گمانم نسبت به او (سعید) را ناامید نساخت.

## پارلمان په آینه کې

*انصاري م*

نن چې ګورم پارلمان په آینه کې
ځان ته زه شمه حیران په آینه کې

رشوتونه تشنابونو کې چې اخلئ
هر څه ثبت دي ستا د ځان په آینه کې

د ډالرو په خمار کې مو ځان ورک کړ
شولئ سپک لکه ډېران په آینه کې

وزیران مو په څو سپکو پیسو اخلي
ولې شوئ دومره ارزان په آینه کې

ها وعدې او هغه لاپې چې تر ته لاړې
چې مو کړلې د کمپاین په آینه کې

له اسلام او افغانیت نه مو ځان خلاص کړ
نشته رنګ مو د انسان په آینه کې

دا مارشال مو په مذهب ډېر ښه پوهېږي
نه شرمېږئ د وجدان په آینه کې

دا ملت به مو پر کاڼو لوټو ولي
یاست تور مخ د هر افغان په آینه کې

# گلځونه

## لمرمخي

محمد نعیم افغان

څولمر مخي دي له شپو سره په جنګ دي
دا سپین ستوري له تیارو سره په جنګ دي

پریوسف یې درس دمینې دی ویلی
له زندان او زولنو سره په جنګ دي

له اورونو دې ډار نه لري ازره !
ستابچي له سرو لمبو سره په جنګ دي

په ولجه کې یې یاغي سرونه راوړل
نابللو میلمنو سره په جنګ دي

دایمان زرینې وړانګې ورسره دي
له چورلکو او ټانګو سره په جنګ دي

شهادت لره په هسکه غاړه درومي
اتلان دي له پردو سره په جنګ دي

د (افغان) دښمنان څو مره لیونیان دي
له سپېڅلو عقیدو سره په جنګ دي

## مقابله

نصرت زرمتی

د زور او دمنتر او دسندان مقابله وه
دمینې د الفت او دهجران مقابله وه

چارې دعداوت یې وې ایستلي لور په لوري
څو ډلې رقیبان او دجانان مقابله وه

څو ستوري دیادونو دګوګل په مدار تاو وو
د اوښکو تسلسل او دګریوان مقابله وه

غمونه را چاپیر وو له کورګي د محبته
یوسف وو زولنې وې او زندان مقابله وه

قدم په قدم غاښ راته ښامار چیچه نصرته
یوازې لاروی وم په یو ځان مقابله وه

## پرچم من

شهید سمیع الله سلحشور

پرچم سفید رنگم دل دشمنان شکسته
اهتزاز دلکش او دل حاسدان شکسته

مژده میدهد به امت بعد قرنهای ظلمت
که خلافت دوباره خبرش جهان شکسته

همه ملحدین و کفار دشمن اند به این نشانم
که نشان پرچم من همه را توان شکسته

سر صلح و ساز گاری نبود در آن بدشمن
مگر این که دشمنان را پیکر ومیان شکسته

زیر چتر رایت من جای عز وسرفرازیست
همت وصلابتش سخت سر خائنان شکسته

این نشان وحدت وحق بهمه مجاهدین است
مگر آنکه دین خویش را بهر ملحدان شکسته

از صدای اهتزازش میرسد بگوش امت
که ظهور منجی ما دوری زمان شکسته

## دثقيل وار

ولي الله ذهين

په زړګي باندې مې ليک اسم اعظم دی
چې مې کور ته څوک راځي سر يې قلم دی

غلامان او ګوډاګيان به په کې سر خوري
دا د پاکو شهيدانو پاک حرم دی

ددې خړو غرولمن کې عجب خوښ يم
هريو څاڅکی دچينې راته زمزم دی

لاندې بل دغرب په شوبلو باندې اور دی
يو ځل بيا د ميکناټن په کور ماتم دی

عجيبه غوندې زړه وړونکی يو انځور دی
د ثقيل وار مې دغرب په سينه سم دی

شکر خدايه بيا دې فتحه رانصيب کړه
زموږ زړونه دې پرې يخ کړل ستا کرم دی

مجاهده ستا ذهين دې تر تا ځار شي
ستا ګوزار يې دزخمي زړګي مرهم دی

## پرهرونه

دا څومره موده کيږي چې رااوري پرهرونه
د زړه پر شنه اسمان مې لکه ستوري پرهرونه

زموږ دخندا سيل ته پر بام دي راختلي
دوينو سره ټيکري کې ماته ګوري پرهرونه

بيباکه يو روان ځو د ګلانو ومېلو ته
پر سر مو دي نيولي لکه سيوري پرهرونه

هر ځای مو پر ديوال لکه شعار راځړولي
حکومت کړي پر جهان نه دي کمزوري پرهرونه

ويښ شوي لکه ونې دي ګلان ځيني تويږي
په باد دحوادثو چې وښوري پرهرونه

زاهده معلوميږي دامو کښت او کرونده ده
رنګين لکه کوکنار دي په هر لوري پرهرونه



### د مجاهدې شاعرې حنيفې زاهد شعري ټولګه چاپ شوه

(دخړ کلي له کونجه) داد تکړه او وتلي افغان شاعرې حنيفې زاهد لومړنۍ شعري ټولګه ده چې په دې وروستيو کې په ښايسته ډيزاين او صحافت د چاپ په ګاڼه سينګار شوې او د شعر دمينه والو ترلاسونو رسيدلې ده.

دغه ټولګه چې ټولټال ۲۵۵ مخونه لري په سر کې يې دخپروندېې ټولنې يادښت، دښاغلي معصوم هوتک تقريظ او خپله دليکوالې لنډې ځرګندونې راغلي دي، په ټولګه کې لسګونه عنوانه حمدونه، نعتونه، منظومې موعظې، غزلونه، ترانې او نظمونه راغلي دي، چې په ښه توګه اوډل شوي او ترتيب شوي دي.

د کتاب د پښتۍ په لومړي مخ دافغانستان دجنوب ديوه ښايسته کلي خيال پاروونکی انځور راغلی دی، چې ګومبزي ودانۍ يې دهمدې سيمو د کليو کليوال تشخص ځرګندوي.

حنيفه زاهد چې دزابل ولايت دشاجوی اوسيدونکې ده، يوه له تکړه او باتجربه شاعرانو څخه بلل کيږي، چې له ديني او ملي روحيې څخه ملا مال شعرونه ليکي.

دنوموړې شعرونه له سوچه ديني ارزښتونو او ملي وياړونو څخه حکايت کوي، حنيفه زاهد يوه له هغو مجاهدو شاعرانو بلل کيږي، چې دامريکايي يرغل په وړاندې يې په پوره ميړانه قلم پورته کړی دی، او له سپيڅلي جهاد څخه يې علنا ملاتړ اعلان کړی دی.

دنوموړې اشعار له دې امله هم مهم بلل کيږي، چې دافغانستان او اسلامي نړۍ دروانو حالاتو په اړه ديوې افغانۍ ميرمنې دريځ او احساسات په کې ځرګند شوي دي.

دلته به (دخړ کلي له کونجه) درته هغه شعر راواخلو چې ددې کتاب په ۲۱۰ مخ کې چاپ شوی دی.

## د پکتیکا ولایت مرستیال والي :

# د پکتیکا په جهادي بهیر کې سږنی کال

# د امریکایانو د ماتې کال و

پکتیکا ولایت د افغانستان په جنوب ختیځ کې موقعیت لري، چې ختیځ او جنوب ته یې د پاکستان سرحدات شمال ته یې غزني او پکتیا ولایتونه او لویدیځ ته یې د زابل او غزني ولایتونو مربوطات پراته دي.

پکتیکا ولایت ۱۹۴۸۲ مربع کیلو متره مساحت لري او نفوس یې شاوخوا دری نیم لکه تنه ښودل شوی دی، پکتیکا ولایت چې پخوا د خوست ولایت غوندې د پکتیا ولایت برخه وو او دری وارو ته یې لویه پکتیا ویل، په ۱۳۵۸ هـ ل کال کې د کمونیستانو د حکومت په مهال د جلا ولایت په توګه اعلان شو، د پکتیا مرکز د شرنې ښارګوټی دی، او ولسوالۍ یې د متاخان، سرروضه، یوسف خېل، یحیی خېل، اورګون، نکه، زیړوک، برمل، اومنه، زرغون شهر، چارباران، جاني خېل، ګومل، سروبی، ډیله/خوشامند، وازه خوا، تروو، وړممې او ګیانخېلو په نومونو دي.

پکتیکا ولایت یو د افغانستان له هغو ولایاتو څخه دی چې د امریکایي یرغل په وړاندې مسلح جهاد په پوره ځواک سره په کې روان دی، دا چې په دې ولایت کې فی الحال جهادي وضعه څرنګه ده، د دې ولایت د جهادي چارو له مرستیال سره مو مرکه کړې چې تاسو یې لوستلو ته رابولو.

**پوښتنه** : که له هر څه وړاندې زموږ لوستونکو ته ځان معرفي کړئ، مننډوی به مو یو !

**ځواب** : الحمد لله و کفی و الصلوة و السلام علی عباده الذین اصطفی اما بعد : نوم مې عبدالله دی په حماد مشهور یم، د غزني ولایت د مقر ولسوالۍ او سیدونکی یم، او همدلته مې اوږده موده جهادي فعالیت درلود، له تیرو څو میاشتو راهیسې د پکتیکا ولایت د جهادي چارو د مرستیال په حیث ټاکل شوی یم، او اوس هم همدغه وظیفه سرته رسوم.

**پوښتنه** : سږ کال په پکتیکا کې د جهادي وضعیت اړوند کومه داسې ښکاره بریا یا تحول وو، چې په دې سیمه کې رامنځته شوی او تاسو ترې یادونه کولای شئ ؟

**ځواب** : په پکتیکا ولایت کې سږ کال په جهادي ډګر کې لوی تحول دا وو، چې په زرګونو هغه امریکایي یرغلګر ځواکونه چې دې ولایت ته یوه لسیزه پخوا راغلي وو، او د دې ولایت په ګڼو سیمو کې یې پخې قرارګاوې او پوستې جوړې کړې وې، دا چې په تیرو لسو کلونو کې پرلپسې د مجاهدینو تر محکمو ګوزارونو لاندې وو، بالاخره سږ کال په دې مجبور شول چې د قرار په ځای فرار ته ترجیح ورکړي، نو ځکه وړباندې شکست ګډ او په تیښته یې پیل وکړ.

په ۲۰۱۳ م کال کې تقریبا تر ډیره حده پورې له پکتیکا څخه یرغلګر وتښتیدل، او هغه اډې چې په ډیرو خواریو او مصارفو یې ودانې کړې وې ترې پاته شوې، دا اوس چې زه له تاسو سره خبرې کوم یوازې د اورګون او د خیرکوټ

ولسوالۍ د سه ګانې په سيمه کې امريکايي پوځيان شتون لري او ډير محدود کسان يې په ښرنه کې هم شته ، نور لله الحمد له پکتيکا څخه امريکايان او نور خارجي اشغالګر په کامله توګه تښتيدلي دي.

**پوښتنه** : ستاسو په باور د امريکايانو د تيښتې لامل څه کيداى شي ، هغه کوم عوامل وو چې امريکايان يې تيښتې ته مجبور کړل ؟

**ځواب** : زه باور لرم امريکايان چې ډير په غرور پکتيکا او د افغانستان نورو سيمو ته راغلي وو ، يوازې له مجاهدينو سره د الله تعالى د نصرت د ملتيا په پايله کې شکست ورباندې ګډ شو او وتښتيدل.

په پيل کې چې دوى دلته په خومره قوت سره راغلي وو ، هيچا دا تصور نه کوو چې داسې له شکست سره به مخ شي ، خو مجاهدينو په الله تعالى په باور سره خپل همت له لاسه ورنکړ ، شهادتونه ، تکليفونه او ډول ډول مشکلات يې وزغمل ، ترڅو يې د الله تعالى په نصرت سره دښمن تيښتې ته اړ کړ ، په پکتيکا کې دلواړه ، برمل ، زيړوک او په ځينو نورو سيمو کې د امريکايانو خورا پخې اډې وې ، خو هماغه دلواړه او د برمل د مرغې کمپاينونه چې يو وخت غير مفتوحه بلل کيدل، د الله تعالى په نصرت سره دښمن ترې وتښتيد او مکمل تباه شول .

**پوښتنه** : په پکتيکا کې څو ولسوالۍ مکملې فتحه شوي دي ؟

**ځواب** : په پکتيکا تر اوسه درې ولسوالۍ نکه ، چارباران او ډيله په مکمل ډول فتح شوي دي او د مجاهدينو په لاس کې دي ، پخوا په دې سيمو کې د دښمن حضور وو ، خو اوس د مجاهدينو په ولکه کې دي.

**پوښتنه** : خلک استدلال کوي چې امريکايان له سيمو ووتل او په ځاى يې په ځينو سيمو کې افغاني اجيران اربکيان او نور پريښودل ، آيا تاسو باور لرئ چې د داخلي اجيرانو ټغر به يې هم ورټول شي ؟

**ځواب** : هو موږ باور لرو ، چې ان شاءالله لکه څرنګه چې امريکايي يرغلګر د الله تعالى په نصرت سره له شکست سره مخامخ شول ، همداسې به يې تنخا خواره لاسپوځي هم شکست خوري ، اصلي مشکل د اشغالګرو امريکايانو وو ، چې په هرلحاظ تر داخليانو قوي ، منظم او ځواکمن وو ، چې هغوى وتښتيدل او زموږ له سيمو ورک شول ، دا بايد لويه بريا وبولو .

مجاهدينو همدا اوس د داخلي اجيرانو په مقابل کې که له يوې خوا د جهادي عملياتو لاره خپله کړې ، له بلې خوا يې د هغوى دعوت او جلبولو ته هم ډيره توجه کړې ده ، چې ښه نتيجه يې ورکړې ده .

**پوښتنه** : تاسو د دعوت او جلب وجذب يادونه وکړه آيا تر اوسه د دښمن کسانو ستاسو دعوت منلى دى ، يا کومه سيمه بيله جنګ څخه د دشمن له حضور څخه تصفيه شوې ده؟

**ځواب** : هو ، سږکال په پکتيکا کې د دعوت پروګرام ښه روان وو ، د اجمالي احصايو له مخې يوازې د کتواز د خوا په ولسواليو کې تر ۲۰۰ زيات کسان چې اکثره يې اربکيان وو ، له مخالفته يې لاس اخيستى او مجاهدينو ته راغلي دي ، د سر روضې ولسوالۍ د مارزکو سيمه چې پراخه علاقه ده ، د ولسي خلکو د همکارۍ په نتيجه کې په بشپړه توګه له اربکيانو تصفيه شوه ، د غه راز د برمل په شکين کې ۷۲ تنه اربکيان او حکومتي عسکر مجاهدينو ته تسليم شول او خپل امکانات يې مجاهدينو ته وسپارل .

**پوښتنه** : په پکتيکا کې عام اولس کومې خوا ته ميلان لري آيا مجاهدين اولسي ملاتړ له ځانه سره لري ؟

**ځواب** : په پکتيکا له ځينو محدودو سيمو پرته چې هلته اولس د دښمن لخوا سخت ځپل شوى او په مطلق اضطرار کې قرار لري ، نور د پکتيکا عام اولس بشپړ له مجاهدينو سره همکار دى ، همدا لامل دى چې د ولايت ډيره برخه د مجاهدينو تر کنترول لاندې ده .

پخوا چې ځینو خلکو له حکومت سره خواخوږي درلوده ، اوس چې د حکومت لخوا ملیشې اربکیان ورباندې مسلط شوي دي هغوی هم له دښمن څخه متنفر شوي دي ، که څه هم په خوله څه نه شي ویلی خو په زړه کې له دښمن څخه ښې خاطرې نلري.

که په کومه سیمه کې دولسي خلکو وس ورسیږي ، نو د دښمن خلکو ته اجازه نه ورکوي چې په سیمه کې یې واوسي ، د پکتیکا په مرکز ښرنه کې امریکایانو په څو کلیو کې داربکیانو پوستې واچولې ، مګر لږ موده وروسته داربکیانو دناوړو کړنو او ظلمونو له لاسه ټولو خلکو پاڅون وکړ ، په یوه غږ یې حکومت ته ځواب ورکړ تردې چې له هماغو ځایونو یې اربکیان وشړل.

په پکتیکا خصوصا په یحی خیلو ، وازیخوا ، جاني خیلو سروبي او ځینو نورو سیمو کې حکومتي عسکرو او اربکیانو په عامو خلکو خورا سخت ظلمونه ترسره کړي دي ، چې د دښمن همدې ظالمانه کردار د ولس سخت نفرت راپارولی.

**پوښتنه** : سږکال که په پکتیکا کې د څو مهمو جهادي عملیاتو او بریاوو یادونه که وکړئ او که دا هم ورسره زیاته کړئ ، چې په کومو سیمو څومره عملیات ترسره شوي دي ؟

**ځواب** : په پکتیکا کې سږکال ځیني ستر او مهم بریدونه ترسره شول ، له دې جملې د پکتیکا په مرکز ښرنه کې د دښمن په مهمو ادارو باندې د استشهادي مجاهدینو ډلییز برید چې دښمن ته یې درانه تلفات واړول ، په سر روضه کې د دښمن په مراکزو د موټربم په واسطه خورا ستر فدایي برید ترسره شو ، چې د دښمن اډې یې بشپړې له منځه یوړې.

په پکتیکا کې څو تنه د دښمن د سر خلک لکه په جاني خیلو د سادول په نامه یو لوی مفسد کومندان او ورپسې دوه نور داربکیانو او پولیسو قومندانان ختم شول ، په اورګون ولسوالۍ کې هم د دښمن یو لوی مفسد او مضر کومندان له منځه لاړ.

د پکتیکا ولایت خورا پراخ دی چې ۲۲ ولسوالۍ لري په دې ټولو ولسوالیو کې جهادي کارونه روان وو ، د ټولو ولسوالیو په اړه که خبره کوو شاید ډیر وخت واخلي او دقیق حساب ذکر کول یې شاید نا ممکن هم وي ، خو په ټوله کې ویلای شي چې په پکتیکا کې له تمې سره سم جهادي عملیات روان وو ، زموږ د څه مودې پخوا یوه احصایه ښیي چې یوازې په سر روضه کې ۱۰۷ عملیات ترسره شوي دي ، له دې څخه تاسو اټکلولای شئ چې په دې ولایت کې د عملیاتو کچه څومره وه.

**پوښتنه** : همدا اوس په هیواد کې د کرزي د رژیم لخوا له امریکایانو سره د امنیتي قرارداد په اړه خبرې روانې دي ، تاسو د یوه مجاهد په صفت په دې اړوند څه ویل غواړئ ؟

**ځواب** : لکه څرنګه چې د اسلامي امارت رسمي دریځ دی ، باید ووایم چې موږ دا مبارزه د دې لپاره نه ده پیل کړې ، چې قدرت ځان پرې ورسوو او یا هم په پای کې له یرغلګرو سره معامله وکړو ، زموږ یوازینی هدف اعلاء کلمة الله ، اسلامي نظام قائمول او محارب یرغلګر له دارالاسلام څخه شړل دي ، ترڅو پورې چې زموږ د غه علیاء اهداف نه وي ترسره شوي ، دا مبارزه به روانه وي ، په دې لاره کې که موږ له هر ډول سترپاوو یا ازموینتونو سره مخامخ کیږو ، موږ ورته اماده ګي لرو.

له یرغلګرو سره د ګوډاګیانو امنیتي تړون په حقیقت کې د داخلي او بهرني دښمنانو یو مشترکه دسیسه ده چې غواړي افغانان او نړیوال ورباندې تیر باسي ، دا تړون نه شرعي جواز لري او نه هم په هیڅ منطق د منلو وړ دی ، دا ډول تړونونه له کرزي پخوا نورو ګوډاګیانو هم له خپلو بادارانو سره امضاء کړي دي ، خو کومه نتیجه یې نه ده ورکړې . زه باور لرم چې افغان اولس به دې ډرامې ته ډیره اعتناء ونه کړي او خپل مقدس جهاد ته به ادامه ورکړي .

ــ محترم حماد صاحب مننه چې زموږ پوښتنې مو ځواب کړې

ــ له تاسو هم مننه پای

# د اتلانو بهیر

م-نذیر احمد



## شهید مولوي محمد اسمعیل مظلوم

شهید مولوي محمد اسمعیل مظلوم دخداي بښلي مولوي عبدالغفور ځوي دحاجي فضل احمد لمسي دلوګر ولایت دبرکي برک ولسوالي اوسیدونکي په کال (۱۳۵۳ ه ل) دهمدي ولسوالي دهوني سیدانو په کلي کي دي فاني نړي ته سترګي رڼي کړي لمړني دیني زده کړي یي له خپل پلار مبارک نه تر سره کړي دلوړو دیني زده کړو په موخه یي په کال (۱۳۶۷ ه ل) یي دپاکستان دسرحد صوبي ته سفروکړ هلته یي په مختلفو دیني مدارسو کي له وتلو جیدو علماو نه زده کړي تر لاسه کړي چې په کال (۱۳۷۹ ه ل) یي دنبوي سپیڅلو احادیثو دفراغت ویاړمن سند دسرحد دزرګري مدرسي له شیخ صاحبانو څخه ترلاسه اودفضلیت پګړي یي وتړله

په (۱۴۱۵ ه ق) کال دافغانستان دطالبانو داسلامي غورځنګ له فاتح کاروان سره یوځاي اودکابل ترسقوط پوري ئي دلوګر ، پکتیا ، خوست ،غزني ،ننګرهار، کنړ، پروان و کاپیسا ، کندز ، تخار ولایتونو په نظامي جبهاتو کي نه ستړي کیدونکي جهادي فعالیت ترسره کړ، په ګران هیواد دامریکا یي ښکلور بولو دوحشي یرغل په لمړیو ورځوکي په پوره ایماني جذبي اوقوت دلوګر ولایت له ننګیالیو شاځلمو اومجاهدو طالبانو سره یې پوره دولس کاله په ډیر متانت ،میړانه ، اخلاص اوقوي ایمان دلوګر په مختلفو سیمو کي په خاصه توګه برکي برک ولسوالي کي نظامي فعالیت ترسره کړ

ددولس کلن جهادي فعالیت په موده کي یي ډیر ددوزخ لایقان دځمکي له مخ نه تري تم په ډیر ووحشي کرغیړنو ښیرویي صلیبي میندي بوري کړي اودسیمي دمجاهدو پرګنو اوسرسپارلو مجاهدینو په ملتیایي دبرکي برک اتیا فیصده مفتوحه سیمه دیر غلګرو اودهغوي له داخلي اجیرو مزدورانو له ناولیو منګولو ازاده اودسیمي مظلوم خلک یي دهغوي له شرنه وژغورل، مظلوم شهید ددنګي ځواني قوي متهو نیکو اخلاقو دیني پوهي اوریښتیني تقواي خاوند و اودمجاهد و همځولو په منځ کي دخداي ورکړ یو ښو اوصافو یوه ځانګړي حسینه ښیره وه د مشرانو داوامرو ډیر مطیع په کشرانو مجاهدینو ډیر مشفق او په نظامي چارو کي د ښه تدبیر او پوره مهارت څخه برخه مند و په سنګرکي یي له مجاهدینو سره زیات وخت په خوش طبعي نیک سلوک اولازمو توصیوتیراوه چې داتلانود بهیر لارویان او دهغه دسنګر ملګري به یي تر ډیروخته یاد تازه اودنیمګړو ارمانونو دتحقق په لاره پل اوچتوي

مظلوم شهید داسلامي امارت ترقیادت لاندي د اتلسو کلو ویاړلیک کاغذ په لاس په کال (۱۳۹۲ ه ل) دغبرګولي په (۲۹) نیټه دبرکي برک ولسوالي دکتب خیلو په سیمه کي په پلي امریکایي ښکلوربولو تریوه فاتحانه برید وروسته د ښمن دهوایي ځواک دبرید په ترځ کي له دوو تنو نورو مجاهدو ملګرو سره دشهادت اوچت مقام په برخه شو ، پاتي

دي نوي چي له مظلوم شهيد سره دوه تنه نور په دين مين او زړور اتلان هريو جانان (مطمين) او ثمرګل (جهادي) هم يو ځاي دابدي ژوندون دکلي په لور کډي بار کړي

(روح دي ښاد او ياد دي تل ژوندي وي)

## دشهيد مولوي مخلص ژوندته لنډه کتنه

عادل احمد منصور

مولوي سيدنبي مخلص دمولوي سيد محمد زوی دپکتيا ولايت دزرمت ولسوالۍ دسهاکو دبرو ملايانو او سيدانو په يوه ديندار ه کورنۍ کې په کال ۱۳۵۸ هجري شمسي دحمل دمياشتي په ((۱۸)) مه نېټه دنيا ته سترګي پرانيستي .لومړنۍ زده کړي يې له خپل پلار مولوي صيب سيدمحمد څخه پيل کړي اوپه کال ((۱۳۶۵)) هجري شمسي کال دپېښور ته دباړې په نورالمدارس مدرسه کې له جيدو علماؤ څخه علمي زده کړي ته دوام ورکړ، او څلور کاله يې په نورالمدارس کې تېر کړل او بيا په (۱۳۶۹) لمريز کال کې دپېښور په امدادالعلوم جامعه کې يې زده کړې کولې څه وخت يې دلته تېر کړ کله چې دطالبانو تحريک راغی او غزني فتحه شو او مجاهدين دميدان ښار په لور روان شو شهيد مولوي مخلص دمجاهدينو له کاروان سره يو ځای اوپه نظامي درس يې پيل وکړ دشهيد ملا ګل رحمن تر استادۍ لاندې يې دټانګ ،هوان ،بم يک ،اونورو اسلحو زده کړه په پوره مهارت سرته ورسوله څو کاله له خپلو ملګرو سره اوږه په اوږه دفساد په مقابل کې وجنګېده په خپل مسلک کې ډير پرمخ تللی ،باتور ،تکتيکي پوه او غښتلی زلمی وو.

چې په کال ۱۳۷۵ لمريز کال دميزان په ((۱۹)) مه نېټه زخمي شو ،له جوړېدو وروسته يې بيا خپلې مبارزې ته دوام ورکړ دتقسيم اوقات له مخې شپږ مياشتې به يې ديني تعليم او شپږ مياشتې به يې جهادي فريضه ادا کوله په جهادي دوران کې له شهيد ملا سيف الرحمن((منصور)) سره وو ،څو کاله يې ددشهيد ملا سيف الرحمن((منصور)) ترقيادت لاندې جهادي خدمت وکړ ،دطالبانو دحکومت دختمېدو وروسته چې کله امريکايانو په افغانستان يرغل وکړ ،نو بيا مولوي مخلص دامريکايانو او دهغوی دمزدورانو په مقابل کې په خپله اسلامي جهاد لاس پورې کړ او دشهيد ملا ګل رحمن تر مشرئ لاندې يې په ښه تکتيک چريکي عملياتن کول، تردې چې دامريکايانو او دهغوی د مزدورانو له خوا ډير تنګ او په کور يې څو ورځې مسلسل چاپې وهل کېدې بالاخره په هجرت کولو مجبور او څوکاله يې په پاکستان کې تير کړل کله چې دزرمت په ولسوالۍ کې دمجاهدينو فعاليتونه ورځ تر بلې زيات شول نو مولوي مخلص بيا خپل جهاد ته ادامه ورکړه.

د ۱۳۸۵ لمريز کال دميزان په اخره کې له خپلو ملګرو سره پاکستان ته ولاړ ،او هلته يې دهنګو په ولسوالۍ کې په دار العلوم حنيفه کې له شيخ الحديث حضرت مولانا عبدالسميع صاحب سره درسونه شروع کړل ،يوکال يې درس وويل او په کال ۱۳۷۶ لمريز دجوزاد دمياشتې په لومړيو ورځو کې له څو تنو ملګرو سره دزرمت ولسوالۍ ته ولاړ او هلته يې دسهاکو په محاذ کې دشهيد ملا فضل الرحمن حنفي تر مشرۍ لاندې څومياشتې په ښې تجربې سره خپل مسلک وکاروه ،يعنې بم يک او دهوان عمليات چې يو له هغو عملياتو څخه دپکتيا ولايت دعالم کلا چې دامريکايانو يو بېس وو ګڼ شمېر خارجيان په کې مېشت وو ،دا عمليات دبم يک په واسطه تر سره کړل چې په کې خارجيانوا و دهغوی مزدورانو ته په اعلی درجه مرګ ژوبله واوښته دهمدې کال دميزان دمياشتې په وروستيو ورځوکې بيا دخپلو څو تنو ملګرو سره دخپلې زده کړې لپاره پاکستان ته ولاړاو هلته يې په کرمه ايجنسۍ ډاډ کمر کې په مدرسه نجم المدارس الفاروقيه کې له الحاج شيخ الحديث والتفسير حضرت مولانا مسلمين راشد صيب سره موقوف عليه يعنې وړه دوره شروع کړه او په کال ۱۳۸۷ دجوزا دمياشتې په (۱۰) مه نېټه ممتاز سند ترلاسه کړ. او ددې مياشتې په اخر کې دڅوتنو ملګرو سره دجهاد سنګر ته لاړ او هلته د زرمت ولسوالۍ ددولت زيو په محاذ کې له ملابلال احمد منصور تر مشرۍ

لاندې خپله جهادي فریضه اداء کوله تردې چې دمموز دمحاذ مسوول ملا فضل الرحمن شهید شو دلوړو مقاماتو لخوا څخه شهید مولوي صاحب مخلص دهغه پر ځای وټاکل شو.درې کاله پرله پسې یې مسوولیت په ډېره ښه توګه ترسره کړ دخپل مسولیت په وخت کې ډیرښه په تکتیک سره جنګونه وکړل اوپه ۱۳۸۷ لمریز کال دقوس دمیاشتې په لومړیو ورځوکې دګاونډي هیوادپه ډیره اسماعیل خان کې له شیخ القران والحدیث حضرت مولانا خلیفه دین محمد صاحب سره لویه دوره شروع کړه اوپه کال ۱۳۸۸المریز کې دجوزا دمیاشتې په ۱۷ مه نیټه یې دفضیلت دستار په سرکړ،او بیرته سنګر ته لاړ اوپه کال ۱۳۸۹ دسنبلې دمیاشتې په ۱۷مه نیټه باندې دمموزو دخدرخان په کلا کې دامریکایانو په یوه وحشیانه چاپه کې بندي شو پنځه ورځې یې دشرنې په کمپاین کې تېرې کړې ۵ ورځې وروسته دا امریکانو د نه پېژندنې له امله بیرته راخلاص شو،

باالاخره دسنبلې دمیاشتې په۲۹مه نیټه چې د ۲۰۱۲/۹/۱۹او د۱۴۳۳ د ذوالقعدې دمیاشتې له ۲مې نېټې سره سمون درلود دزرمت ولسوالۍ دکولانګو دجغتیانو په سیمه کې دچهارشنبې په ورځ دسهار په (۷) بجو داجېرې اردو دکمین په ترځ کې دشهادت لوړ مقام ته ورسېده.انا لله وانا الیه راجعون

دشهید مولوي صاحب زامن: محمد حسن،احسان الله ،دادالله

په علم او تصوف کې یې اولنی بیعت له خلیفه دین محمد صاحب نه کړی وو له هغه پس تجدید یې دمرحوم خلیفه صاحب له ورور خلیفه صیب عبدالرحیم دامت برکاتهم العالیه سره وکړ.

## شهید مولوی محمود(حمزه)

مولوی محمود دمعلم صاحب شیراغا زوی په خټه تاجک چې په کال(۲۳/۱۰/۱۳۵۹)د جمعې په شپه د لوګرولایت مرکزته څیرمه ده مغلان په کلي کې په یوه مسلمانه اومتدینه کورنی کې دې فاني دنیاته سترګې وغړولې.

دژوند شپې اوورځې یې له ابتدانه له غمونواودردونو سره مل وي ، شهید حمزه لاد ژوند په ښواوبدو نه وه چې سرویرغلګرو په ګران هیوادافغانستان خپلې پلیدې پښې کیښودې اوپه وحشتونو یې پیل وکړ ، هماغه وو چې شهید مولوی محمود حمزه یرغلګرو روسانو آن په ماشومتوب کی په زړه وداغه ، خوږه مورا ومعصومه خورېې ورته شهیدانې کړې.

مولوي حمزه دالله ددین لارونیوله ، ابتدایی زدکړې یې دخپل کلي دجومات له امام څخه ترلاسه اودنورو زدکړولپاره یې بیلابیلو دیني مدرسوته مخه کړه ، چې بیاسختو اقتصادي ستونزو دیته مجبورکړ چې په خواري اومزدوري پسې ګاونډي هیواد ایران ته ولاړشي ، هلته هم جابرو واکمنو نوموړی داسنادونه لرلو په جرم ونیولو اولږ ترلږه یې ۷ کاله په زندان کې پرې تیرکړل ، تردې چې دکرزي رژیم راغی ، ایران ورسره داړیکو جوړولو په نیت ګڼ شمیرافغانان له زندان څخه ازادکړل چې مولوي حمزه هم په همدغه ډله کې راغی او افغانستان ته راستون شو

له راخلاصیدوسره سم یې بیرته په دیني زده کړو اوپه مقدس جهادلاس پوري کړپه پوره میرانی اوشجاعت اود هرراز تکالیفوپه ګاللو سره یې د جهاد سپیڅلی فریضه اداکړه ،چې دوه ځله یې دجهاد په لارکې دیرغلګرواو ددوی داجیرانو ترزندانو اوشکنجو پوري ورسید اویوځل ټپي هم شو.

اتل حمزه ،دجهادترڅنګ دلوړودیني زدکړو دفراغت سعادت هم ترلاسه اودفضلیت پګړی وتړله اودغه سترارمان یې پوره شو ، خودعلم ، تقوا اوشجاعت ددغه نوماندي هستی بله هیله چې هغه دالله په لارکې دشهادت لوړه مرتبه وه بالاخره دلوګرولایت مرکز ته نیژدې دډاګ قلا په سیمه کې له امریکایي عسکرسره دیوې مخامخ تاریخي مقاومت اوجګړې ورسته د(۰۵/۰۴/۱۳۹۲) نیټه دسهار په ۲بجو یې له

نیمګړي دنیاګۍ سره مخه ښه وکړه اود شهادت لوړ جام یې نوش کړ روح دې ښاد او یاد دې تل وی.

تامرګ مړکه ته مرګی نه یې وژلی

.ترقیامته به ژوندی یې ای شهیده

په محشرکې به هم توره درسره وي

ته په هرځای کې زمری یې ای شهیده ) ( بسمل ) ( حامد )

## نومیالی شهیدخواني ، درپیژنو؛

صدیق الله عزیز

عبیدالله چې مشهور په خواني وه دقومندان حاجی شینواري ځوی د لوګر ولایت اړوند د پادخواب شانه دکلي اوسیدونکی وه ، نوموړی په کال ۱۳۷۲کی ده فاني نړۍ ته سترګي وغړولې ابتدایی دیني زدکړې یې دخپل جومات له ملاامام اودهجرت په دیارکې په نعمانیه مدرسه کې تر سره کړي اوعصري زدکړي دخپل کلي په لیسه کې تر دولسم ټولګي پوري ورسولي.

خو په ګران هیواد افغانستان باندې چې کله صلیبي یرغلګرو هجوم راوړ شهید عبیدالله خپل ټول دنیوي کارونه یوي خواته پریښودل اوځان جهادته وقف کړ او الله تعالی ورته داسې جهادي شجاعت او ستره حوصله ورکړه چې په ۲۴ ساته کې به یې دخپل کلي په شاوخواکې په اشغالګرو اوددوی په اجیرانوزړه یخ نکړ اووسلواله حمله به یې پرې ونکړه ارام به نه ورته.

دنوموړي اتل شهید دنیږدي ملګرووینا ده چې شهید عبید الله ( خواني ) په خپل لاس سوونه بریدونه پلان ، بې شمیره ماینونه یې داشغالګرودټګ اوراتګ په لاروکې ځای پرځای اوپه ترڅ کې یې درانه اوبې شمیره زیانونه اوتلفات دښمن ته وراړولي وو

شهید عبیدالله چې دامریکایانوپه زړونوکې ژورپرهارونه جوړکړي وو اوشپه اوورځ یې دهغه په نیولو اوشهیدولوپسي یوکړي وه ، باالاخره دغه لوی اتل له وحشي دښمن سره په یوې جګړې کې ترمخامخ کیدوورسته د۱۳۹۱ کال دلړم دمیاشتي په نیټه دهوایي برید په ترڅ کې هدف وګرځید ،نوموړی په هغه ځای کې ټپي اوبل دسنګرملګری یې ( ناظروحدت ) دشهادت مقام ته ورسید.

خوناترسه دښمن عبیدالله له ځان سره کمپاین ته یووړ ، چې کله ورته معلومه شوه چې نوموړی ددوی لوی قاتل اومطلوب شخص دی اوخواني دي ، نوپه ډیره بې رحمی یې په برچو شهیدوګرځاوه ، اناالله واناالیه راجعون ) یادي تل اوجنت الفردوس یې مقام وګرځه ، یاده دې وي چې له نوموړي څخه یوځوی اودوه لورګاني دې نیمګړي دنیاګۍ ته دامانت په شکل پریښي.الله تعالی دې حامي اوناصرشي !

# پنځه نصیحتونه

دحضرت محمدصلی الله علیه وسلم حضرت انس رضی الله عنه ته پنځه نصیحتونه

حضرت انس رضی الله عنه وایي چې: ماته پیغمبر صلی الله علیه وسلم پنځه نصیحتونه کړي دي اوهغه دادي:

۱ ـ ای انسه ! پوره اودس کوه ، عمر به دې زیات شي.

۲ ـ زما پر هر امتي سلام کوه ،نیکۍ به دې زیاتې شي.

۳ـ په میرمن دې سلام اچوه ، په کور کې به دې خیر زیات شي.

۴ ـ د څاښت لمونځ کوه ، له تانه چې مخکې کوم نیکان وو هغوی نه پرېښودل.

۵ ـ ای انسه ! په کمکیانو رحم کوه ،د مشرانو درناوی کوه ،نود قیامت په ورځ به زما ملګری شي. [ تفسیر ابن کثیر]

مولوي ضياالحق حامد

# خپلې قربانۍ ته داحترام په سترګه کتل دبري نښه ده

زمونږ هیوادتل دداسې حوادثو شاهدوي چې کارپوهان ددې له اټکل څخه عاجزوي خودزماني برګشت دیوداسې څښتن کارده چې دهغه علم دانساني علم له دایرې څخه بهر ده دنړۍ په سر چې دهر چاظاهري قوت اوتکبر اوج ته ورسیږي نودتکبر اوجلال څښتن یې زمونږ په هیوادکې دیومیړني ځواک سره مخ کړي دنړۍ دځواکمن قدرت ښکیلتیا یوازې دتجربو په بنیاد بنا نده بلکې دغه خبره زمونږ له اسلامي شریعت سره سمه برابره ده ځکه معجم البلدان کې یوروایت دی درسول اکرم ص څخه چې فرمایي (الخراسان کنانة الله اذا غضب الله بقوم رماهم بهم )زمونږ هیواد چې له یوخواخدای ج دهرمتکبرلپاره قبرستان ګرزولی خوله بل پلوه دافغان اوولس لپاره دامتحان مرحله ده چې سوک پکې بریالي اوڅوک دناکامي سره مخ کیږي ځکه کومه قرباني چې افغان غیرتي اولس ورکړه داد عقل له دایرې څخه بهر ده خودادمتعال خدای فضل اولوریینه ده چې زمونږ غیور اولس یې دې بې ساري قربانۍ ته اماده کړ.

یوازې نن ورځ نده چې دغه غیور اولس دومره ستره قرباني ورکوي بلکې دچنګیزخان له وخته رانیولې بیاترننه پورې دوام لري هغه چنګیزخان چې دنړۍ ستر قوتونه یې له ماتي سره مخ کړل همدغه افغان غیرتي اولس وو چې چنګیزخان ته یې دماتي نوم وروښوداوددوی دیرغل مخ یې په ټپه ودراوه بیادوخت طاغوتي ښامار انګریزی لښکرچې ټوله نړۍ یې دخپلې واکمنۍ لپاره وړه بلله ددنیا په هر ګوټ یې دیرغل نظیر ښکارکړی وبلاخره خپل اجل زمونږ په خاوره دافغان ځواکمن قوت سره مخ کړل څوځله افغاني شازلمیوورته دعبرت درسونه ورکړل چې حتی خپل مکناټین نامی سرلښکر یې هم دیوغازی په ګوذار دجهنم دکندې مقیم شو.

ددوی شکست اوزلت ته په نه کتو سره زمونږ شمالي ګاونډي هم په خپل ظاهری قدرت وغولیده اودخپلې کمونستي نظریې دپراختیا په نیت یې زمونږ په پاکه خاوره یرغل پیل کړ دی یرغل هم زمونږ هیواد ته خورا ډیری بدمرغی اوناخوالی راوړی خوافغاني شازلمیانو خپل همت له لاسه ورنکړاوپه ډیره میړانه یې دیرغل جواب په درانه مقاومت سره ورکړ چې په نتیجه کې یې زمونږ ستر غلیم دشکست اوزلت سره مخامخ شو.

دسرولښکروعمومي قوماندان جنرال ګروموپ دحیرتان له بندره دتیریدوپه حالت کې وویل چې دادغه یرغل کړی هلاک دشی ځکه دی یرغل مونږ ته داسی ماته راکړه چې دروسیې په تاریخ کې ساری نلری ګروموپ په خپل کتاب کې لیکې ماهغه کنځل روسی مشرانوته وکړل چې مناسب نه دی چې زه یې په کتاب کې ولیکم .خوکه له یوې خواروسانو شکست وخوړخوله بل پلوه یې زمونږ په لکونو هیوادوال اومجاهدین شهیدان اوپه لکونونوریې مهاجر اوپه لکونونوریې یاورک اویازخمیان کړل ددی بې ساری قربانی په بدل کې دنړۍ یو لوی اوسوپرطاقت په صفربدل

شو دافغانانو دغه قرباني يوازې دافغانانو لپا ره نه بلکه دافغانستان دګاونډيانو لپاره هم دنجات سبب شوه خوافسوس چې زمونږ جهادي مشرانو يا رهبرانو دخپل مظلوم اولس قربانيو ته دوقار او احترام په سترګه ونه کتل چې انجام يې دافغانستان خرابي اوددوی شرمنده ګی شوه هرهغه څوک چې خپلو قربانيو ته د احترام په سترګه ونه ګوري الله ج به يې دخوارۍ اوذلت سره مخ کړي.

دافغان جهاددرې(۳) داسې ثمرې درلودې داذربايجان يا باکو دوخت په نوم يوه ورځپاڼه ليکي دافغانانو جهاددرې داسې ثمرې درلودې چې ټوله نړۍ ترينه انکار نشي کولای

لمړی دکمونستي نظريې شکست په ټوله نړۍ کې حتی په روسيه کې هم کمونستي نظام ختم او کمونست ګوند دماتې سره مخ شو چې اوسه پورې حکومتي چارې اتحادی ګوند پرمخ بيايي

دوهم دبرلين ديوال نړيدل داهغه ديوال وو چې روسانو دجرمنې په خاوره کې وهلی و خوچې کله روسانو په افغانستان کې شکست وخوړ نوجرمنيانو دغه ديوال ونړاوه چې اوس هم ددغه ديوال ټوټې دنړۍ په هرموزيم کې دافغان جهاد دثمرې په نوم پرتې دي

دريم دچيچينستان ازادي وه چې دجوهردودايوف په لاس حاصله شوه هغه جوهرچې دروسي يرغل په مهال دهوايي ځواک مشرو ، دی په خپله مرکه کې وايي چې زه ولې مسلمان شوم؟ خپله ځواب وايي ځکه مسلمان شوم چې دي يرغل په وخت زه دهوايي ځواک مشروم نوزمونږ عسکربه چې دمجاهدينو دمقاومت سره مخ شول دغه مقاومت به په لمړي سرکې ٪۵۰وو بيا به مونږ دداسې مقاومت په وخت کې هوايي ځواک څخه کاراخيست خوچې کله به مونږ دمقاومت په ساحه زيات بمباروکړ عقل به ويل چې دلته به څوک هم ژوندي نه وي پاتي خوچې کله به مونږ دمقاومت ځای ته پلي عسکروروخواره کړل نودغه مقاومت به د٪۵۰ نه اتيا۸۰ يا ٪۱۰۰ته لوړ شوماته دافکرپيداشوچې دغه زياتوالی دمقاومت يومعنوی قوت ده چې ديولايزال خالق ج وجود ده نوله همغه ورځې زه دايمان په رڼا باندې منورشوم.

دجهاددغه سخت پړاو په کاميابي سرته ورسيد داسې ثمرات يې له ځان سره درلودل چې نړيوال هم ورته حيران او منونکې وو خودشـــهيدانو دارمـــانونو دپوره کېـــدو پرځـــای لـــه رهبرانو اوزياتروقومنـــدانانو ســـره قـــدرت تـــه درســـيدو فکرپيداشواوخپلې ګټې يې يوازې په خپل قدرت کې منحصري کړې چې دداخلي جنګ او دافغانستان دتباهۍ اوبربادۍ سبب شو خوافغان غيور ملت بيا هم بې پوښتني پاتې نشو ددغه ملت دمظلوميت په خاطر د طالبانو اسلامي تحريک راودانګل اوهرظالم ته يې دعبرت درس ورکړاو په نتيجه کې يې يو پاک اوسپيڅلی شرعي نظام قايم کړ داهغه نظام و چې دشهيدانو ارمان اوديوسوچه اسلامي نظام نمونه وه خودوخت مغرور اومتکبر قدرت امريکاته دغه نظام دزغملوو نه ونو ځکه يې په افغانستان باندې فوځي يرغل وکړاو په ظاهره لحاظ يې زمونږ هغه اسلامي نظام ونړاوه خوبيا هم افغان وولس دخپل معمول په څېر د يرغل په مقابل کې لکه سپرودريدل اوددې يرغلګرځواک په مقابل کې يې بې ساري قرباني ورکړه خودنړۍ طاغوتي لښکرته يې هم داسې دعبرت درس ورکړ چې دوی يې لاتصورهم نشو کولای بيشميره يرغلګر يې دجهنم په زندان کې په ابدي بند باندې محکوم کړل.

دغه بهيرانشاالله دکاميابۍ په درشل کې ده اومونږ باور لروچې ددغه مقاومت قائدين اومشران هغه څوک دي چې له الله نه ويرېږي اودقدرت اومادياتوسوچ اوفکرنشته ورسره ، له الله تعالی نه سوال کوو چې دوی نورهم په خپلو دغو موخوکې بريالي اومستحکم وګرځوي اوترټولومهمه خبره داده چې ترپايه پخ خپلې سترې قرباني دزړه له اخلاصه وويارې اودوقاراواحترام په سترګه ورته وګوري ،ځکه داپه خپل اصل کې لويه کاميابي ده اوکه خدای ج مکړه دوی خپلو قربانيوته په درنه سترګه ونه ګوري نوويره ده چې نتيجه اوثمره به دتير جهاد په شان وی ، دروان بهيردکاميابي نښې ډيرې دي دبيلګې په توګه لکه چې روسي جنګي جنرال په خپل شکست باندې اعتراف کړی وو دامريکايې يرغلګروقومندانان مکرستال هم خپل کانګرس ته په ډاګه کړه چې زمونږ دغه جګړه يوه نه ګټونکې جګړه ده ددښمن په خپله ماتې باندې اعتراف زمونږ لپاره دوياړ خبره ده.

دبری بله بيلګه داده روسانو هم دشکست په وخت کې دصلحې خبرې کولې دوی هم دصلحې لپاره ليوال دي اوغواړي دصلحې په نامه له افغانستانه پښې سپکې کړي دښمن چاته صلحه نه راولې خودادتيښتی لپاره بهانه جوړويو هيله ده زمونږ مشران نورهم ددښمن هرکيد او حربې ته متوجه وي .

# امریکا له افغانستان څخه

ژ- خلیل حسن

## هر کال ۵۰ ملیارده ډالره تر لاسه کوي !!

د ګلوبل ریسرچ په نامه په یوه غربي انټرنیټ پاڼه کې یوه خپور شوی راپور چې دروسي سیاستوال (شروود رز) په قلم لیکل شوی پکې راغلي چې امریکا په هر قیمت هڅه کوي چې په افغانستان کې خپل حضور اوږد کړي او په دغه هیواد کې دخپلې پوځي او سیاسي واکداري جرړې غښتلي وګرځوي ، دلیکوال په خبره امریکا لدې امله افغانستان له لاسه نه ورکوي چې په دغه هیواد کې په سیاسي او پوځي اهدافو سربیره پراخي اقتصادي ګټې هم تر ګورت لاندې لري چې هغه په اسانه نشي پریښودلی .

منبع وايي چې یوله هغو دلایلو چې باراک اوباما هڅه کوي تر څو په افغانستان کې له ۲۰۱۴ کال څخه اخواهم خپل عسکر او پوځي اډې ولري دادی چې دامریکا څارګره اداره هر کال دمخدره توکو دقاچاق له درکه ۵۰ ملیارده ډالر عوایدلري ، ځکه کله چې طالبان په افغانستان واکمن وو دمخدره توکو په کر او قاچاق یې سخت بندیز لګولی وو ، خو له تیرو ۱۲ کلونو راهیسي نه داچې مخدره توکي په پراخه پیمانه وکرل شول ،بلکې غرب او اروپاته یې هم قاچاق امریکایانو په لوړه کچه ترسره کړ .

پروفسور مایکل چودووفسکي چې دکاناډا دمونترال په ایالت کې دیوه نړیوال تحقیقاتي مرکز مشر دی وايي : په کال ۲۰۰۱ کې چې طالبانو په افغانستان کې دیوې مذهبي پریکړې له مخې دمخدره توکو په کر او قاچاق کلک بندیز ټینګ کړ په اروپا کې دهیرویینو څر ګند کمبود ښکاره شو او اروپایان له لویې پریشانۍ سره مخ شول .

اریک والبرګ چې دیوې کاناډایي ورځپاڼې مدیر او دمصر دالاهرام ورځپاڼې نامتو لیکوال دی په خپلې یوې مقالې کې ویلي : دامریکایانو له لوری دافغانستان داشغال په ړومبي کال هلته ۱۸۵ ټنه مخدره توکي تولیدشول ، په ۲۰۰۶ کې ۶۱۰۰ ټنو ته ورسیدل په ۲۰۰۷ کال افغانستان دنړی په سطحه ۹۳ فیصده هیرویین تولید کړل ، چې دلیکوال په وینا دامریکا څارګره شبکه دهیرویینو ددومره لوی مقدار په تولید او بیانړی ته په قاچاق کې مهم رول درلوده او لري یې .

ویلیام بلوم چې یو برتانوي څیړونکی دی په خپل کتاب " یاغي هیواد " کې لیکي : سی ای اې ، دچین ملي ګرا او شکست خوړلي قواوي په برما کې خاص ددې لپاره استخدام کړي تر څو په برما ، تایلیندا او لائوس هیوادونو کې دمخدره توکو دقاچاق او تولید سلسله په مخ بوځي ، لیکوال وايي څارګره شبکه له ټولې نړۍ څخه دخاصو الوتکو او پروازونو په زریعه غرب او اروپاته دهیرویینو دقاچاق او رسولو دنده پرمخ بیايي او په لویه کچه اقتصادي ګټې ترلاسه کوي .

جنرال محمود ګاریف چې دروسي پوځ له مهمو قوماندانانو شمیرل کیږي د ۲۰۰۷ کال داګست په ۲۰ نیټه یې له آرټي تلویزون سره په مرکه کې اعلان کړی وو چې امریکا په هیڅ بیه په افغانستان کې دمخدره توکو دکر او تولیدمخه نه نیسي ، ځکه امریکایان سخته اړتیالري تر څو له همدغې لاري خپل پوځي لګښت پوره او تمویل کړي .

نوموړي جنرال په خپله تازه مرکي کې چې له یاد تلویزون سره یې کړې ویلي : دی کره شواهد او مدارک لري او امریکایان هم په خپله داخبره مني چې له افغانستان څخه په هغو الوتکو کې چې غرب او اروپاته پروازونه کوي هر کال د ۵۰ ملیارده ډالرو په ارزښت هیرویین او مخدره توکي نقلوي ، دجنرال په خبره که کرزی او دهغه رژیم له امریکایانو سره امنیتي تړون او دقضایي مصونیت توافق لیک لاسلیک هم نکړي ، هغوی دغه ستراتیژیکه سیاسي او اقتصادي مالامال سیمه په دومره اساني نه پریږدي او اورمورو به هلته دخپل حضور لپاره نور دلایل او بهانې ولټوي .

# لورته د واده په شپه د مور نصيحت

م – ن

امامة بنت الحارث يوه ډېره هوښياره مېرمن وه چې الله تعالی د عقل د نعمت تر څنګ د فصاحت نعمت هم ورکړی و، هغې چې کله خپله لور أم اياس واده کړه نو له مېړه سره د ملاقات په شپه يې خپله لور يوازې ګوښه کړه او لاندې وصيت يې ورته د ډالۍ په توګه وړاندې کړ چې کتابونو رانقل کړی دی دوصيت متن په لاندې توګه دی:

اې لورکۍ! که د يو چا د زيات ادب له وجهې نصيحت پرېښول کېدلای؛ نو ما به تاته نه وای کړې خو څرنګه چې نصيحت د هېرجن انسان لپاره يادونه او خبرتياده او د هوښيار انسان لپاره يو ښه کومکې دی نو ځکه يې درته کوم.

اې لورکۍ! که د والدينو په شتمني او خپلې لورته د هغوی د زيات ضرورت په اساس يوه ښځه له مېړه څخه مستغني کېدلای نو ستا به په ټول ژوند مېړه ته اړتيا نه وای پيدا شوې خو ښځې د نارينه وو لپاره پيدا شوې دي او نارينه د ښځو لپاره پيدا شوي دي،

اې لورکۍ! ته له هغه چاپېريال او اب وهوا څخه بېلېږې چېرته دې چې وده کړې وه او له هغې ځالې څخه جدا کېږې کومه کې چې دې ټول ژوند لپاره پاللې شوې وې، اوس هغې نوې ځالې ته ورتلونکې يې چېرته چې ناآشنا يې او د هغه نابلده ملګري خواته ورځې چې نه يې پېژنې او هغه د مشروع نکاح په واسطه په تا باندې واکمن او نګران ګرځي؛ ځکه خوزه درته وايم چې خپل ځان ورته مينځه کړه چې هغه دې غلام شي او دالس خويونه له ځان سره ياد وساته چې ګټه درته وکړي او هم به درسره زما يوياد ګاروي:

اول او دوهم: په هرښه او مشکل حالت کې سر ورسره ټيټوه او په لږشي باندې قناعت کوه او خبرو ته يې ښه غوږ نيسه او هره خبره يې منه

درېيم او څلورم: چېرته چې يې د سترګو نظر او د پوزې بويول لګېږي د هغو ځايونو خيال ساته، ګوره چې کله يې هم ستا په بدن کې په داسې څه سترګې ونه لګېږي چې هغه يې ښه ونه اېسي او پوزه يې بايد د تل لپاره له تاڅخه خوشبويي وبويوي او ښه سينګار درانجو لګول او ښه صفايي په او بو سره لا مبل دی..

پنځم او شپږم: د خوب او خوراک د وختونو يې خيال ساته او تر وخت له مخه ورته تياری نيسه، وختي ورته خوراک تياروه ځکه چې لوږه داوريوه لمبه ده او دوېده کېدلو ځای يې مخکې تياروه ځکه چې بېخوبي يې غسه را پاروي.

اوم او اتم: د هغه د مال او شتمنې چوکېداري او ساتنه کوه او د هغه د کورنۍ د افرادو مراعات کوه يعنې د مشرانو يې احترام ساته او په کشرانو يې شفقت کوه او د ضرر او تکليف يې تحمل او برداشت کوه.

نهم او لسم: هره خبره چې درته وکړي هغه منه او د هغه رازونه مه لوڅوه ځکه چې که يې نافرماني وکړې سينه يې درته تنګېږي او که يې رازونه لوڅ کړې بيا به کله هم د زړه حال در نکړي او په تګ کې به درسره چلېږي.

بله خبره داده چې که دې خاوند خوشاله وي خپګان مه

ښکاروه او که خپه وي خوشالي مه څرګندوه ځکه چې دهغه دخوشالي په وخت کې ستا خپګان يو جرم ګڼل کېږي او دهغه په خپګان کې ستاخوشالي يي نور هم غسه کوي او چې څومره يي ته عزت کوې په هماغه اندازه به ستا قدر کوي او چې څومره يي په مزاج برابره يې هغومره به ستاملګرتيا خوښوي اوکله به هم خپل ارمان ته ترهغه وخته ونه رسېږې ترڅو چې دهغه غوښتنو ته پخپلو غوښتنوترجيح ورنکړې او خپله خوشالي دهغه ترخوشالتيا ځار نکړې او الله تعالی دي په خيرونـــــــــــــــو واړوه.

دا د مسلماني مېرمني اخلاق وي په همدې شکل د هغې پوهه او روزنه شوي وي او همدا شکل د مسلماني مور وصيت وي او د مسلماني مېرمني د ژوند اصول وي، هره خور او لور چې کله واده کېږي بايد همدا ډول وصيتونه ورته بيان کړل شي او وپوهوله شي چې دا اصول د خپل کورني ژوند بنيادونه وګرځوي تر څو يې ژوند نېکمرغه او پر امن او له ويارونو ډک وي او جنت د همدا سي مېرمني ځای وي رسول الله صـــلی الله عليـــه وســـلم فرمـــايي:

عن کعب بن عجرة قال قال رسول الله صلی الله عليه و سلم: ألا أخبرکم بنساءکم من أهل الجنة الولود الودود التي إذا ظلمت هي أو ظلمت قالت هذه يدي في يدک لا أذوق غمضا حتی ترضی (المعجم الأوسط(

له کعب بن عجره رضي الله تعالی عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: آيا زه تاسو ته ستاسو جنتياني ښځي در وښيم؟ هغه ښځي دي چې هغوی مينه پالونکي زېږوونکې وي او چې کله ظلم وکړي او يا ظلم ورباندې وشي خپل خاوند ته راځي او ورته وايي دا دی زما لاس ستا په لاس کې ږدم او چې تر څو ته خوشاله نشې زه له خوب څخه خوند نشم اخيستلای او نشم ويده کېدلای

# آموختن علم شرعی و تأثير آن بر متعلم

قال الإمام الشافعي رحمه الله: »من تعلّم القرآن عظمت قيمته، ومن تعلّم الفقه نبل مقداره، ومن كتب الحديث قويت حجّته، ومن تعلّم الحساب جزل رأيه، ومن تعلّم اللّغة رقّ طبعه، ومن لم يصن نفسه،لم ينفعه علمه«.

امام شافعی رحمه الله فرمودند: »هرکس قرآن بياموزد ارزش و قدر وی بالا می رود، و هرکس فقه بياموزد توانايیش زياد می گردد، و هرکس حديث بنويسد (و حفظ کند) حجت و برهانش قوی می شود، و هرکس علم حساب فراگير درأی و تفکرش محکم می شود، و هرکس ادبيات بياموزد طبع و سرشت وی نرم و لطيف می شود، و هرکس نفس خودرا محفوظ ندارد علمش سودی برايش ندارد«. »أدب الدنيا والدين للماوردي« (٢٨).

# اهل سنت والجماعت

اهل سنت والجماعت

# یاناجیه فرقه

در یمه برخه

مفتي شاهد حقاني

د(اهل سنت والجماعت )دبحثونو په لړکې به داخل دا وڅیړو ،چې دا د(اهل سنت والجماعت )مرکبه اصطلاح کله ،څنګه اودچا په مقابل کې رامنځته شوه؟ ،دابه هم وشنوچې نوموړې اصطلاح کله دیوې حق پالې فرقې لپاره وکارول شوه اوڅنګه یې اسلامي نړۍ کې استعمال رشد او وده وکړه ؟.

دعلم کلام دعلماوو له تحقیقاتو څخه ښکاري چې دباطلو فرقواو اهل اهواء په مقابل کې ،دحق پالې یا ناجیه فرقې لپاره د(اهل سنت والجماعت )نوم یا اصطلاح د دوهمې هجري پیړۍ په وروستیو یا ددریمې هجري پیړۍ په لومړیو کې ښه په شد ومد سره کاریدلې ده ،او دا مبارکه اوله اباطیلومذاهبو څخه تفکیک کوونکې اصطلاح په همدې پیړیو کې عمومي رایج شوې او خلکو یې حاملین له نورو څخه په ډاګیز تفکیک سره پیژندلي دي.

دعقاید و دفن نامتو او دسیمې دجامعاتو او مدارسو په درس نظامي کې شامل کتاب دامام النسفي رح (شرح عقاید ) دوه پیښې رانقل کړې دي ،چې یوه یې دجلیل القدر تابعي ،زاهد ،صوفي ،محدث او فقیه (امام حسن بصري رح ) او دمعتزلو دمشر (واصل بن عطاء ) ترمنځ هغه مکالمه ده ،چې داعتزال پیل ترې هم شوی ،ددې نه خو په ډاګه ښکاري، چې دلومړۍ هجري پیړۍ په وروستیو او د دوهمې هجري پیړۍ د لمړیو لسیزو تر منځ د(اهل سنت والجماعت ) دعقایدو څخه دلومړۍ منحرفې ډلې (معتزله وو ) پیل شوی ،داځکه چې د(شرح عقاید )دشرح (النبراس )دتحقیق له مخې ( دمعتزله وو ، مشر (واصل بن عطاء )په (۸۰)هـ پیړۍ کې زوکړې دی او بیا په (۱۳۱)هـ پیړۍ کې مړ شوی دی.

بله پیښه هغه ده ،چې له امله یې اشاعروو (اهل حقو )ته د(اهل سنت والجماعت )نوم ورکړل شو ،هغه د(جبائي )او (امام ابوالحسن الاشعری رح )ترمنځ هغه مباحثه وه، چې د(النبراس )دتحقیق له مخې یې د(امام ابوالحسن الاشعري رح )په باب لیکلي چې:

((ولد سنة ستين ومأتين وتوفى سنة نيف وثلاثين وثلاث ما ئة ))یعني امام ابوالحسن اشعري رح په (۲۶۰)هـ کال کې تولد شوی او بیا په درې سوه څو دیرش کې وفات شوی.

ددې څخه داسې معلومیږي چې د معتزله وو، په ګډون دفرقو باطلوو پر خلاف داشاعروو، یا اهل سنت والجماعت دناجیه فرقې تشکل یا منظم جوړښت ددویمې هجري پیړۍ په وروستیو لسیزواوددریمې پیړۍ په لومړیو لسیزو کې شوی او پدې دور کې د(اهل سنت والجماعت) داصطلاح عمومي ترویج هم رامنځته شوی.

په(اصول وتاریخ الفرق الاسلامیة) کې بیا داسې لیکل شوي چې:

أما الأشاعرة: فإنهم فرقة كلامية طارئة، نشأت بعد القرون الفاضلة(۲) فهى تنتسب إلى الإمام أبى الحسن على بن إسماعيل الأشعرى المتوفى سنة ۳۲۴هـ -رحمه الله- وكان معتزلياً ، ثم تحول عن المعتزلة عام(۳۰۰هـ) تقريباً وصار يرد عليهم بأساليبهم الكلامية من جانب، وبنصوص الكتاب والسنة من جانب آخر، وبهذا وقف للمعتزلة وتصدى لهم(۳) ، هو ومن نهج منهجه، حتى أفحمهم، وهذا عمل جليل يحمد له.

(۱) ... انظر ص (۱۲ - ۲۰) من البحث السابق.

(۲) ... أى فى نهاية القرن الثالث الهجرى، وذلك بعد أن تخلى الإمام أبو الحسن الأشعرى عن الاعتزال سنة (۳۰۰هـ). انظر: مقدمة الإبانة، للشيخ حماد الأنصارى، ص۸.

(۳) ... انظر: تبيين كذب المفترى، لابن عساكر، ص۳۸-۴۵. ومقدمة الشيخ حماد الأنصارى على كتاب "الإبانة عن أصول الديانة" للإمام الأشعرى ط۱/ الجامعة الإسلامية بالمدينة المنورة. (اصول وتاريخ الفرق الاسلامية)

پدې فوق الذکرکتاب کې ليکل شوي، چې امام اشعري رح د فاضلو او بختورو پيړيو څخه وروسته ددريمې پيړۍ په وروستيو کې زيږيدلی او په (۳۲۴) هـ کال کې وفات شوی، په (۳۰۰) هجري پيړۍ کې له اعتزال څخه بيل او د معتزله وو، په مقابل کې کلک ودريد او په نقلي او عقلي دلايلو يې ددوئ مقابله کوله، دامام اشعري رح دوفات دوخت دتحديد په هکله د ((اصول وتاريخ الفرق الاسلامية)

او (النبراس) ترمنځ شايد لس کاله شا وخوا فرق وي، خو د(النبراس) شرح چې يو معتبر دی، ښايي تحقيق يې تر بل هغې مستند وي.

مګر د ډير اثارو او اخبارو څخه بيا د(اهل سنت والجماعت) داصطلاح قدامت جوت دی، او آن ددې اصطلاح شتون دصحابه وو، په وخت هم متحقق دی، چې دا په حقيقت کې دصدر اسلام اصطلاح جوتيږي، په (اديان باطله اور صراط مستقيم) کتاب کې دځينو پخو حوالو په ښسټ د(مفتي محمد نعيم صيب) دتحقيق له مخې هم داسې جوتيږي، چې دا اصطلاح قدامت لري، او آن صدر اسلام کې لا موجوده وه، دصحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم، په عصر کې هم موجوده وه، او دحضرت عبدالله بن عمر ﵄، حضرت عبدالله بن عباس او حضرت ابوسعيد خدري ﵄ څخه يې دثبوت او شتون روايتونه شوي، لکه امام سيوطي رح چې په (الدر المنثور) کې په لاندې توګه ددې آيت په تفسير کې ددې مفسرو صحابه وو، په تفسير سره نقل کړې دی: يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ (۱۰۶) وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (۱۰۷)

ترجمه: په هغه ورځ چې سپين به شي (ځينې) مخونه (دمؤمنانو) او توربه شي (ځيني) مخونه (دکافرانو) پس هر چې هغه کسان دي، چې تور شوي دي مخونه ددوئ (نو وبه ويل شي دوئ ته) آياکافران شوي وئ، تاسو وروسته له ايمان راوړلو څخه؟ نو وڅکئ عذاب په سبب ددې چې وئ تاسو، چې کافران کيدلئ. او هر چې هغه کسان دي چې سپين شوي دي مخونه ددوئ، نو وي به دوئ دالله ﷻ په رحمت کې، چې دوئ به هغې کې تل وي (يعنې جنت کې).

وأخرج ابن أبي حاتم وأبو نصر في الإبانة والخطيب في تاريخه واللالكائي في السنة عن ابن عباس في هذه الآية قال تبيض وجوه وتسود وجوه قال "تبيض وجوه أهل السنة والجماعة وتسود وجوه أهل البدع والضلالة

وأخرج الخطيب في رواة مالک والديلمي عن ابن عمر عن النبي صلى الله عليه و سلم في قوله تعالى يوم تبيض وجوه وتسود وجوه قال: "تبيض وجوه أهل السنة وتسود وجوه أهل البدع "

وأخرج أبو نصر السجزي في الإبانة عن أبي سعيد الخدري "أن رسول الله صلى الله عليه و سلم قرأ يوم تبيض وجوه وتسود وجوه قال: تبيض وجوه أهل الجماعات والسنة وتسود وجوه أهل البدع والأهواء (الدر المنثور للسيوطى)

ژباړه: په الابانه کې ابن ابي حاتم او ابو نصر، خطيب په خپل تاريخ کې او په السنة کې اللا لکايي ددې آيت ((تبيض وجوه وتسود وجوه)) په تفسير کې دحضرت ابن عباس ﷺ قول داسې رانقل کړی: چې هغه وايي داهل سنت والجماعت مخونه به سپين شي او داهل بدعاتو او ګمراهانو مخونه به تور شي، همداسې خطيب په (رواة مالک او الديلمي) کې دهمدې آيت ((تبيض وجوه وتسود وجوه)) په باب دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ هغه روايت رانقل کړی، چې هغې کې ددې آيت معنی حضرت رسول اکرم ﷺ داسې کړي چې: داهل سنتو مخونه به سپين شي او داهل بدعو مخونه به تور شي، او أبو نصر السجزي په (الابانه) کې دحضرت ابو سعيد خدري ﷺ څخه روايت نقل کړی چې: حضرت رسول اکرم ﷺ دا آيت ولوست: ((يوم تبيض وجوه وتسود

وجوه ) )نو ويې فرمايل:چې داهل جماعاتواوسنتومخونه به سپين شي اوداهل بدعاتواو اهل اهواءمخونه به تور شي.

..وقال تعَالى: ؟يَوْمَ تَبْيَضُّ وَجُوهٌ ؟ [آل عمران (١٠٦) ].

أي: تبيض وجوه المؤمنين يوم القيامة ، وتسوّد وجوه الكافرين. وقال ابن عباس: تبيضُ وجوه أهل السنّة والجماعة ، وتسودُ وجوه أهل البدعة والفرقة.

تطريزرياض الصالحين ج١ ص٣١١

ژباړه :الله تعالى فرمايي:پدې ورځ به ځينې مخونه سپين شي )په تطريز رياض الصالحين كې ليكي:چې دمؤمنانو مخونه به دقيامت په ورځ سپين شي او دكافرانو مخونه به تور شي ،اوددې آيت په تفسيركې حضرت ابن عباس ﷺفرمايي چې:داهل سنت والجماعت مخونه به سپين شي او دمبتدعينو اوهغه څوك چې تفرق كوي ،دهغوئ مخونه به تور شي.دلته داخبره ثابتيږي چې:د(اهل سنت والجماعت )اصطلاح دحضرت رسول اللهﷺاو بيا دصحابه وو ،په عصركې هم موجوده وه ،اودې رئيس المفسرين صحابي ﷺاهل سنت والجماعت د(تبيض وجوه )دآيت مصداق ګرځولي .

نوددې روايا تو څخه خو په ډاګه ښكاره شوه چې:دا د(اهل سنت والجماعت) مركبه اصطلاح اصلاً په دريمه پيړۍ كې نه ، بلكې پخپله له حضرت پيغمبرﷺڅخه هم قولاً ثابت شوه ،اوپخپله درسول اللهﷺاو بيا وروسته دخلفاوو په دوره كې موجوده وه ،چې همدا صحابه پخپله هم (اهل سنت) او هم (اهل جماعت) وواوهغه تعريف چې داهل سنت شوى پدوئ كې عملاً موجودوو.

وعن الحسن البصري: أدركت سبعين نفرا من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم يرون المسح على الخفين ومن لم ير المسح عليهما جائزا من الصحابة فقد صح رجوعهم كابن عباس وأبي هريرة وعائشة. وقال شيخ الاسلام: الدليل على أن منكر المسح ضال مبتدع ما روي أن أبا حنيفة سأل عن مذهب أهل السنة والجماعة فقال: هو أن تفضل الشيخين وتحب الختنين وترى المسح على الخفين.

البحر الرائق الجزء١ص٤٢٢

لنډه ژباړه: دحنفي مذهب مشهور كتاب(البحرالرايق)چې اوس يې ديوې معتمدې فتاوى مقام خپل كړى ،مصنف يې ليكلي چې:حضرت حسن بصري رح څخه روايت شوى چې: هغه وايي مادرسول اللهﷺ(٧٠)صحابه كرام رضى الله عنهم وموندل ،داسې چې پر موزويې مسح روا بلله ،اوچاچې پر موزومسح روا نه بلله، نو دهغوئ له خپلې رأيې څخه رجوع ثابته شوې ده ،لكه حضرت ابن عباس ﷺحضرت ابو هريره ﷺاوحضرت عايشة رضى الله تعالى عنها ،شيخ الاسلام وايې چې:پدې خبره دليل چې دمسحې نه منكر ګمراه او مبتدع دى، هاغه روايت دى چې: له حضرت امام ابو حنيفه رح څخه چا د اهل سنت والجماعت دمذهب په هكله وپوښتل نو هغه ورته په ځواب كې داسې وويل چې:ته شيخين (حضرت ابو بكر صديق ﷺاو حضرت عمر ﷺ)غوره وګڼې اوته له زومانو ختنين (حضرت عثمان ﷺاو حضرت علي ﷺ )سره محبت وكړې اوبل داچې په موزومسح روا وبولې.

دحسن بصري رح لدې روايت هم ثابته شوه چې:دحضرت امام ابو حنيفه رح دحيات په عصركې چې دويمه هجري پيړۍ او دتابعينو قرن و ،هم د(اهل سنت والجماعت )اصطلاح لدې امله اهل حق خلكو ته كاريده چې فتنې پيدا شوې وې ،اواهل اهواء په ډيريدو وو ،نوشايدهغه مهال دمبتدعينو او شيعه ګانو فتنه ډيره غښتلې وه ،چا مسح على الخفين نه منله او ځينې روافضو به بعضې خلفاء راشدينو كې تفضيل او تفكيک كاوه، نو امام صيب يې مقابل جانب (اهل سنت والجماعت )داسې څوک معرفي كړل ،چې حضرت شيخين غوره بولې ،ختنينو سره محبت كوي او پر موزومسح جايزبولې .........

كه لږ دقت وشي نو د(الدرالمنثور)او (شرح عقايد )يا نورو داسې كتابونو دتحقيقاتو تر منځ كوم تصادم او تناقض ځكه نشته چې د( اهل سنت والجماعت) اصطلاح په لومړي قرن كې هم موجوده وه او مصداقات يې هم وو ،خوپدومره تفاوت چې داسې فرقې لا نه وې پيدا شوې ،چې دا اصطلاح يې په مقابل كې پداسې حق جويانو تطبيق شي چې هغوئ دسنتو متبع او دصحابه وو دجماعت ملګري دي ،ځكه دادرې قرونو ته چې حديث شريف كې دخير پيړۍ ويل شوي (.....عن عبد الله عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه قال خير القرون قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم ثلاث أو أربع ثم يجئ قوم سبق شهادة

أحـــدهم يمينـــه ويمينـــه شـــهادته(احكـــام القـــران /ج٣/ص٢٢٢)

دداسې باطلو فرقو زېږېدل لا چا نه وو ليدلې، چې بيا کله دحسن بصري رحمه الله تعالى وخت و، نو معتزله وو سر راښکاره کړ، نو هم لا په رشد کې نه وو، چې دا اصطلاح ورته داهل حقو فولادي کمين شي، صرف داسې لومړی شخص (واصل بن عطاء) راپيدا شوی و، چې ددې ډلې مشرورته وويل شو، خو چې بيا کله په دريمه هجري پيړۍ کې معتزله وو، قوت پيدا کړاو دروافضو اونورو فرقو باطلو تخم وشيندل شو، نو داهل حقو(اهل سنت والجماعت)له منځه (امام ابو الحسن اشعري رح) او بيا (امام ابو منصور ماتريدي رح) يې په مقابل کې د (سد سکندر) په شان ودريدل او ددې باطلو فرقوا واهل بدعاتو مقابله يې پيل کړه، نو خلکو ورته د(اهل سنت والجماعت) امامان وويل، او ترننه ددوئ هغه عقايد چې له قرآن او سنت څخه يې رانقل اوددې اباطيلو مقابله يې پرې کوله، دمسلمانانو منځ کې شته او پيروان يې يا په (اشاعره) يا (ماتريديه) سره يادېږي.

دبحرالرايق پدې روايت کې هم داهل سنت والجماعت داصطلاح قدامت او هم يې فضايل ځليږي:

وفي خبر عبد الله بن عمر عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه قال: من كان على السنة والجماعة استجاب الله دعاءه وكتب له بكل خطوة يخطوها عشر حسنات ورفع له عشر درجات فقيل له: يا رسول الله متى يعلم الرجل أنه من أهل السنة والجماعة؟ فقال: إذا وجد في نفسه عشرة أشياء فهو على السنة الجماعة: أن يصلي الصلوات الخمس بالجماعة، ولا يذكر أحدا من الصحابة بسوء وينقصه، ولا يخرج على السلطان بالسيف، ولا يشك في إيمانه، ويؤمن بالقدر خيره وشره من الله تعالى، ولا يجادل في دين الله تعالى، ولا يكفر أحدا من أهل التوحيد بذنب، ولا يدع الصلاة على من مات من أهل القبلة، ويرى المسح على الخفين جائزا في السفر والحضر، ويصلي خلف كل إمام بر أو فاجر. وفي الحاوي: من أهل النسة والجماعة من فيه عشرة أشياء:

الاول أن لا يقول شيئا في الله تعالى لا يليق بصفاته. والثاني يقر بأن القرآن كلام الله تعالى وليس بمخلوق. والثالث يرى الجمعة والعيدين خلف كل بر وفاجر. والرابع يرى القدر خيره وشره من الله تعالى. والخامس يرى المسح على الخفين جائزا. والسادس لا يخرج على الامير بالسيف.

والسابع يفضل أبا بكر وعمر وعثمان وعليا على سائر الصحابة. والثامن لا يكفر أحدا من أهل القبلة بذنب. والتاسع يصلي على من مات من أهل القبلة. العاشر يرى الجماعة رحمة والفرقة عذابا. قال صاحب الكشاف: في هذا الفصل شروط وزيادات لاصحابنا يجب أن تراعى.

البحرالرائق الجزء٨ص١٥٥

**لنډ مطلب او ترجمه:** حضرت ابن عمر ﷺ له حضرت رسول الله ﷺ څخه روايت کوي، چې هغه ﷺ فرمايي چې څوک په سنت او جماعت باندې وي (دسنتو متبع او دصحابه وودجماعت ملګری او ددوئ اتباع وکړي) نو الله ﷻ به يې ددعا اجابت وکړي، اوده ته به دهرګام چې دا يې اخلي، لس نيکۍ ليکل کيږي او لس درجې به يې لوړيږي، نو يوه کس پوښتنه وکړه چې ای رسول الله ﷺ! سړی به کله پوه شي چې دا داهل سنت والجماعت څخه دی؟ ده ﷺ ورته وويل چې که چا په ځان کې لس شيان پيدا کړل، نو دا به داهل سنت والجماعت څخه وي: يوداچې دا په جمع پنځه وخته لمونځ کوي، يو صحابي هم په بده نه يادوي، دپاچا په خلاف وسله نه راپورته کوي، په ايمان کې شک نه کوي، په قضاء او قدر ايمان لري، دالله تعالى په دين کې مجادله نه کوي، په ګناه سره چاته دتکفير نسبت نه کوي، پر اهل قبله وو دجنازې لمونځ نه پريږدي، په سفر او حضر کې پر موزو مسح روا بولي، دهر امام پسې لمونځ کوي عام ددې څخه چې دا نيک وي که بد وي، او په (حاوي) کې وايې چې دا لس صفات چې چاکې وي، هغه به اهل سنت والجماعت وي: اول دالله تعالى په باب داسې څه نه وايې چې دهغه ﷻ دصفاتو سره مناسب نه وي، دويم: داسې عقيده لري چې قرآن دالله تعالى غيرمخلوق کلام دی، دريم دجمعې او اختر لمونځ هرنيک او فاجر پسې روا بولي، څلورم: په قضاء او قدر ايمان لري، پنځم: په موزو مسح روا بولي، شپږم: دامير پر خلاف وسله وال بغاوت نه کوي، اووم: څلور واړه خلفاء پر نورو غوره بولي، اتم: په ګناه اهل

قبله ووته کافرنه وايي، نهم: چې کله اهل قبله مړه شي نوجنازې ته ورځي، لسم: د مسلمانانو جماعت رحمت او تفرق او اختلاف عذاب بولي، کشاف وايي چې پدې فصل چې زمونږ داهل مذهبو څه شروط او زياتونې شته هغه بايد چې مراعات شي.

همدا سې بحرالرايق د حضرت علي کرم الله وجهه يو رويت رانقل کړی چې هغه هم داسې دی:

وَرُوِيَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ الْمُؤْمِنُ إذَا أَوْجَبَ السُّنَّةَ وَالْجَمَاعَةَ اسْتَجَابَ اللَّهُ دُعَاءَهُ وَقَضَى حَوَائِجَهُ وَغَفَرَ لَهُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا وَكَتَبَ لَهُ بَرَاءَةً مِنْ النَّارِ وَبَرَاءَةً مِنْ النِّفَاقِ ، وَفِي خَبَرِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ { مَنْ كَانَ عَلَى السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ اسْتَجَابَ اللَّهُ دُعَاءَهُ وَكَتَبَ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ يَخْطُوهَا عَشَرَةَ حَسَنَاتٍ وَرَفَعَ لَهُ عَشْرَ دَرَجَاتٍ ، فَقِيلَ لَهُ : يَا رَسُولَ اللَّهِ مَتَى يَعْلَمُ الرَّجُلُ أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ ؟ فَقَالَ : إذَا وَجَدَ فِي نَفْسِهِ عَشَرَةَ أَشْيَاءَ فَهُوَ عَلَى السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ : أَنْ يُصَلِّيَ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ بِالْجَمَاعَةِ ، وَلَا يَذْكُرُ أَحَدًا مِنْ الصَّحَابَةِ بِسُوءٍ وَيَنْقُصُهُ ، وَلَا يَخْرُجَ عَلَى السُّلْطَانِ بِالسَّيْفِ ، وَلَا يَشُكَّ فِي إيمَانِهِ ، وَيُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ مِنْ اللَّهِ تَعَالَى ، وَلَا يُجَادِلَ فِي دِينِ اللَّهِ تَعَالَى ، وَلَا يُكَفِّرَ أَحَدًا مِنْ أَهْلِ التَّوْحِيدِ بِذَنْبٍ ، وَلَا يَدَعَ الصَّلَاةَ عَلَى مَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِ الْقِبْلَةِ ، وَيَرَى الْمَسْحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ جَائِزًا فِي السَّفَرِ وَالْحَضَرِ ، وَيُصَلِّيَ خَلْفَ كُلِّ إمَامٍ بَرٍّ أَوْ فَاجِرٍ البحرالرائق الجزء۲۲ص۸۳

**خلص مطلب: د حضرت علي کرم الله وجهه نه روايت** شوی چې: دا فرمايي چې څوک سنت او وجماعت سره التزام وکړي، نو الله ﷻ به يې دعاء قبوله کړي، حاجات به يې پوره کړي، ټول ګناهونه به يې معاف کړي، داور او نفاق نه به ورته برآت وليکي ......اوعبدالله بن عمر ﷺ دروايت ترجمه مو لړمخکې وکړه ددې نه داسې معلوميږي چې داسلام دڅلورم خليفه ﷺ په وخت کې هم داهل سنت والجماعت اصطلاح موجوده وه اوده مبارک هم پدې اثرکې داهل سنت والجماعت فضايل بيان کړل ترڅو مسلمانان له اهل بدعت څخه دې لورې ته تمايل وکړي او هغه باطلې عقيدې پريږدي.

## داهل سنت والجماعت نوم څنګه او دچا په مقابل کې رامنځته شو؟

امام نسفي رح په (شرح عقايد) او علامه محمد عمر رح په (النبراس) کې کاږي چې: لومړی کرت د مشهور تابعي اوصوفي، محدث او فقيه امام حسن بصري رح په درس کې دنورو په ګډون د(معتزله وو) مشر (واصل بن عطاء) هم ناست و، يوکس راغی اوله امام حسن بصري رح څخه يې پوښتنه وکړه چې:

((ای امام الدين ! اظهر في زماننا جماعة يکفرون صاحب کبيرة وجماعة يقولون لا يضر مع الايمان معصية فکيف تأمر ان نعتقد ؟فتفکر حسن فقال واصل: صاحب الکبير لا مؤمن ولا کافر ثم قام الی اسطوانة من اسطوانات المسجد يکرر ذالک ويقول ان مات بلاتوبة دخل النار ولکن عذابه أخف من عذاب الکفار ويثبت المنزلة بين المنزلتين ........فقال الحسن قد اعتزل عنا.............. ))دانو هغه فرقه ده چې لومړی ځل يې دحق او اهل حقو په مقابل کې مخالفت وکړاو له امله يې ديوې باطلې فرقې (معتزله) په صفت په همدې ورځ تهداب کنبيښودل شو، دخپل بزرګ استاذ او محدث حسن بصري رح پر ځای د(واصل بن عطاء) غلط ځواب اوداستاذ بې ادبي چې: دکبيره ګناه مرتکب ته يې منزله بين المنزلتين ثابته کړه هغه ګستاخي وه، چې دا يې ديوې باطلې (معتزله) فرقې مشرتابه ته ورساوه اودحقانيت له معراجه يې راکيوست، چې ترده وروسته پکې يوناني فلسفي هم ورننوتي او عقايدو کې يې خرافاتي پله نوره هم پسې درنده کړه، ددوئ دا مناقشې اومباحثې لا پيل وي چې دجليل القدر صحابي (حضرت ابو موسی اشعري ﷺ) په کهول کې د(امام ابوالحسن الاشعري رح) په نوم يو ستر نابغه عالم چې وروسته دمتکلمينو اشاعروو امام او دعراق، شام او دخراسان دسيمو خلک پسې د(النبراس) او(شرح عقايد) دمحشي په حواله ودريدل او دمعتزلو مخالفت يې پيل کړ، نو هماغلته وو، چې دوئ ته اشاعره، اوددوئ ملګرو هر يو: (ابوالحسن الباهلي، القاضي، ابوبکر الباقلاني، امام الحرمين او امام الرازي رح) غوندې حق جوی علماوو ته داعتزال پر وړاندې دمبارزې او منطقي مخالفت په خاطر (اهل سنت والجماعت) وويل شول او دا اصطلاح همدوئ ته پدې پير وکارول شوه، چې همدا يې دتسميې اونومونې وخت، لامل او دليل و، ددې څخه وروسته اهل حقو ته

(اهـل سـنت والجماعـت) ویـل کیـږي او باطـل پرسـتو ته اهـل اهواء، اهل بدعت او اهل باطل ویل کیږي ،لکه چې علامـه النسفي رح پـه شـرح عقایـد کـې داسـې لیکـي :.............وشـاع مـذهبهم بـین النـاس الـی أن قـال الشـیخ ابوالحسـن الاشعري لأستاذه أبی علی الجبائي ماتقول فی ثلاثة أخوة مات أحدهم مطیعاً والآخر عاصیاً والثالث صغیراً فقال ان الاول یثاب بالجنة والثاني یعاقب بالنار والثالث لا یثاب ولا یعاقب فقال الأشعري فان قال الثالث لما أمتني صغیراً وما أبقیتني الی أن أکبر فأومن بک وأطیعک فأدخل الجنة فماذا یقول الرب فقال یقول الرب أني کنت أعلم منک انک لو کبرت لعصیت فدخلت النار فکان الأصلح لک أن تموت صغیراً قال الاشعري فان قال الثاني لم لم تمتني صغیرا لئلا اعصی لک فلا أدخل النار ماذا یقول الرب فبهت الجبائي وترک الاشعري مذهبه واشتغل هو ومن تبعه بابطال رأی المعتزلة واثبات ما ورد به السنة ومضی علیه الجماعة فسموا أهل السنة والجماعة (شرح العقاید النسفي )ص ۷.

## دشرح عقاید دعبارت لنډه ژباړه او خلص مطلب

:اوددوئ مـذهب پـه خلکـو کـې شـهرت ومونـد ،تردې چـې (شـیخ ابوالحسن اشعري رح )خپل استاذ(ابوعلی الجبایي) ته وویل چې ته دهغو دریو ورونړو په باب څه وایې چې یو یې مطیع ومري ،بل یې ګناهګار مړشي او بل یې نابالغه مړشي ،نوجبایي ورتـه وویـل چې لومړي ته به ثواب کې جنت ورکول کیږي ،دویم به په دوزخ سره مجازات شي او دریم تـه بـه نـه ثـواب او نـه عتـاب وي ،نو اشعري ورته وویل چې رب العالمین به دصغیر ددې پوښتنې په ځواب کې څـه ووایـې چـې دا ورتـه ووایـې چـې زه دې ولـې وړوکـی مړکـړم ،پریښـی بـه دې وی چـې غـټ شـوی وی ، ایمـان بـه مـې دربانـدې راوړی وی ،ستا اطاعت بـه مـې کړی وی او پایله کې بـه جنت تـه داخل شوی وی ؟نو جبائي ورته ځواب کې وویل چې رب ﷻبه ورته ځواب کې ووایې چې زه پر تا پوهیدم کـه غـټ شـې نو نافرمانـي بـه وکړې ،نواورته بـه ننوځې ،نو ښـه داوه چې تـه صغیر مړشې،امام اشعري رح ورته وویل چې که چیرته بیا دا دویم ورته ووایې چې زه دې ولې صغیر مړ نه کړم، چې له ګناه څخه بچ شوی وی ؟نو اورته به نه وی تللی ،نو رب ﷻ بـه څـه ورتـه ووایـې ؟نو دلتـه وه چې جبائي شکست وخوړ او لـه خجالت سره مخـامخ شو او اشعري رح هـم دده معتزلي مذهب ترک کړ ،او اشعري رح او پیروانو یې ددمعتزلـه وو درأی په ابطال باندې پیل وکړاو همدا یې شغل وګرځاوه ،اودهغې رأی په اثبات یې پیل وکړ چې سنت پرې وارد شوی او دصحابـه وو جماعـت پـرې تللـی او او دایـې احسـن ګڼلـی و ،نـو همدلتـه وه چـې خلکو دوئ پـه اهـل سنت والجماعت باندې ونومول او دوئ پـرې مسمی کړل .

داهـل سنت والجماعـت دعلمبرداراو عقاید چورلټ هماغه دي کوم چې صدر اسلام کې دصحابوو وه اوددوئ لارې دهغوئ دلارو څخه سرچینه اخلي ،کـه څـه هـم د(اهـل سنت والجماعـت )ترکیبي اصطلاح لا له صدر اسلامه تراوسه پورې راروانه ده، پـه ځینو مرویاتو کې (که چیرته صحیح ثابت شي ) لـه حضرت رسـول اکرم ﷺڅخه هم یې اوریدل مسموع دي ،او له حضرت ابن عباس ؓ ،حضرت ابن عمر ؓغوندې کبارو صحابوو څخه خوهمدا سې پـه مرکب شکل لفظاً هم روایت شوي ده ،خوهغـه وخت چې معتزلـه ،روافض یا نور اهل اهواء ډلې نـه وې راوتلې ،عـامو مسـلمانانوته (اهـل سنت والجماعـت) ویـل کیـدل ،خـو چې کلـه دا باطـل فـرق راپیدا شول او (امام ابوالحسن اشعري رح) او بیا( امام ابومنصور ماتریدي رح) غوندې دعلم کلام مقتدایان ددې باطلو ډلو وړاندې ودریدل ،نو هماغه وو ،چې دوئ ته داهل سنتو امامـان وویـل شول داد (اهـل سنت والجماعـت )اصطلاح پـه ښـه قـوت سره هرچیرتـه داهـل حقـو لـه نامـه سره مطـرح او ترننـه دداسـې خلکـو لپـاره اسـتعمالیږي چـې دسـلفو صـالحینو ،متقدمینو اومتـأخرینو علماوو سپیڅلي عقاید دځان لپاره مشال بولي اوهم دسنتوپیروي کوي ،او هم دېولو صحابه کراموا قوال او افعال دقرآن او سنت پـه صحیح تشریح کـې مهـم بـولي ،دمـذهبو نوامامانوتـه پـه درنـده سترګه ګوري اودمفسرینو ،محدثینو ،فقهاوو ،تفاسیر ،روایات او فروعي استنباطات دشریعت مطابق اوددین برخه بولې او پـرې خپله مغرضانه اونامعقوله جرح نه کوي، اونه تقلید تـه شرک وایې ،بلکې ددیـن ټـول اړخونـه چـې حقـاني علماوو تشریح کـړي ،پـرې کامل اعتماد لري او پرمسایلو یې مغرضانه ګوتنیونه ،نه کوي نو انشـاءالله همداسې خلک ددې عصروزمان اهل سنت والجماعت دي او بس !

نوربیا.......................




راټولوونکی : ع ، حکمت

# احسان الله " الهام "

که آنلاین یا چاپي جهادي مطبوعات لولئ ، نو ضرور به داحسان الله الهام په نامه دحماسي شاعر له نوم او اشعارو سره اشنا یاست ، او دې ته به مو تلوسه وي ، چې دجهادي ادب د ګلبڼ دغه نوی شاعر وپیژنئ.

راځئ په ګډه لومړی دغه شاعر وپیژنو او وروسته یې یوه شېبه د هنر او شاعرۍ ننداري ته تم شو.

سید احسان الله الهام بن شهید سید محمد نور اغا بن سید بانور جان اغا بن سید بهایي جان اغا له نن څخه شاوخوا ۳۴ کاله پخوا په ۱۳۵۸ هـ ش کال کې دلوګر ولایت په خرخ ولسوالۍ کې د مشهورصوفي او شاعر مرحوم بهایي جان صاحبزاده په کور کې دنیا ته سترګې وغړولې.

احسان الله الهام چې دخپل پلار یوازینی اولاد / زوی وو ، په عمر بیخي کم وو ، چې پلار یې محمد نور اغا چې په احمد نور اغا مشهور وو ، دغزنې په روضه کې دکمونیستانو لخوا د جهاد په تور ژوندی ونیول شو ، چې بیا یې دژوند او مرګ درک ورک وو ، ترڅو سږکال څو میاشتې وړاندې دکمونیستانو لخوا دشهیدو شویو افغانانو په خپاره شوي لست کې یې نوم راووت چې په ۳۹۱۷ نمبر باندې راغلی وو او په دې توګه یې شهادت رسما تائید شو.

احسان الله الهام چې د پلار د مهربانۍ له سیوري بې برخې وو دهجرت له امتحاني شرایطو سره سره یې خپلو زده کړو ته دوام ورکړ ، ابتدایي دیني زده کړې او ترشپږم ټولګې پورې یې ښوونځی ولوست ، وروسته داقتصادي مجبوریتونو له وجې زده کړې ترې پاته شوې ، خو دخطاطۍ او کمپیوتر زده کړې په برخه کې یې کورسونه ولوستل ، چې په اړوندو برخو کې یې دپام وړ استعداد ترلاسه کړ.

نو موړی چې دبهایي جان اغا په علمي او ادبي خاندان کې زیږیدلی وو ، له کوچنیوالي یې له اشعارو او ادب سره مینه درلوده ، ترڅو یې په ۲۰۱۰ م کال کې دشعرونو په لیکلو پیل وکړ ، چې تراوسه پورې یې ګڼ شمیر اشعار لیکلي دي.

احسان الله الهام وایي چې په تیرو دریو کلونو کې یې تقریبا د ۵۰۰ په شاوخوا کې اشعار او ترانې لیکلي دي ، چې زیاتره یې ورسره خوندي دي او د یونیم سل په شاوخوا کې اشعار ترېنه کمپیوتري وایروس خوړلي دي ، الهام په دې وروستیو کې د ( سپیڅلی الهام ) په نوم دخپلو اشعارو یوه ټولګه هم تیاره کړې ده ، چې تمه ده په نږدې راتلونکي کې چاپ شي.

الهام لا هم خپله قلمي مبارزه جاري ساتي ، نوموړی چې دشعر موضوع يې اسلام ، جهاد ، ديني ارزښتونه ، اسلامي فکر او دې ته ورته ديني موضوعات دي ، دفيسبوک او ازادو انټرنيټي پاڼو له لارې په ورځني شکل خپل اشعار نشروي ، چې په دې برخه کې نه ستړې کيدونکې هڅې يې دقدرداني وړ دي ، دښاغلي الهام او يوشمير نورو هڅاندو متعهدو شاعرانو په ابتکار په دې وروستيو کې دفيسبوک له لارې دفي البديهه انلاين مشاعرو لړۍ هم پيل شوې ده ، چې هره جمعه ترسره کيږي ، او ډير مينوال او ګډونوال يې موندلي دي ، دالهام په شمول د ځوانو مجاهدو شاعرانو دا ډول هڅې دجهادي ادب صف ته قوت او منسجم تشکل ورکوي ، چې په دې توګه نه يوازې دادب په برخه کې موجوده خلا ډکيږي ،بلکې د متدين او متعهد ادب ګلبڼ نور هم غوړيږي.

**يوه شيبه دالهام له شاعرۍ سره**

وړاندې مو وويل چې الهام يو مجاهد شاعر دی ، نوموړی خپل دشاعر کيدو وجه هم دهيواد او اسلامي نړۍ رواني ناخوالې او بحراني حالات بولي ، الهام هڅه کوي ، دشعر په ژبه دخپل اولس او امت غږ ته ازانګه ورکړي ، خپل ټولنيز دردونه بيان کړي ، او ددين ددښمنانو په وړاندې دقلم په نښتر جګړه وکړي.

الهام نوی په شاعرۍ ورګډ شوی دی ، نوځکه خو ضرور ده چې شعر به يې ځيني دکتنې وړ خاليګاوې ولري ، مګر له دې سره سره دنوموړي شاعري ګڼ مثبت ټکي هم لري.

په ادبي فنونو کې (ابتکار )د ( آب حيات ) غوندې ارزښت او افاديت لري ، تقليد او تکرار که دموضوع په لحاظ وي يا هم دلفظي صنايعو د ادبي اثر دضعف مهم عامل بلل کيږي ، بريالی شاعر او اديب هغه ده چې نوې خبره وکړي يا پخوانۍ خبرې په نوي انداز وکړي ، د پخوانيو پل وانخلي بلکې دادب په لاره نوی منډ تېر کړي او (خپله) لار او مسير تشخيص کړای شي.

د ښاغلي الهام په شاعرۍ کې لږترلږه دمحتوا او موضوعاتو په لحاظ نوښت وينو ، چې دنوموړي دشعر دافاديت مهم عنصر يې بللی شو ، له اوسنيو نقادانو نه به مو دا خبره بيا بيا اوريدلي وي ، چې زموږ شعر په يوه خوا روان دی ، او درګرده په کې هغه خبرې او محتويات تکراريږي ، چې له کلاسيکي دورې بيا تراوسه دمبالغې ترحده مکررا ذکر شوې او نظم شوي دي ، نقادان باور لري چې زموږ شعر لا هم د شعر هغه ستيج ته نه دی پورته شوی ، چې د اجتماعي ژوند هنداره بلل کيږي ، شعر مو لا هم يوازې دعشق او مي پرستۍ په کلابندۍ کې حصار دی ، چې د پراخې نړۍ پرسر دپراخ او رنګين ژوندانه دنورو رنګونو څرک په کې نه تر سترګو کيږي.

ښاغلي الهام زموږ په معاصر شعر کې همدا انحصار طلبي او يکه تازي حس کړې ده ، نوځکه معاصر دوديز شاعر دخپل مسؤليت ترپيټي لاندې پړ بولي او دخپل شعر په نښتر يې داسې توبيخوي.

په لونګين ټالونه مه وهه مرګی در ياد کړه !
شاعره ! خام فکرونه مه وهه مرګی در يادکړه !

په ايماني ټال ځنګېدل درته اړين دي ژوند کې
په اوربلو لاسونه مه وهه مرګی درياد کړه

شرم دې ګرانه بس دی نوردي دغزل بيتو کې
په شونډو شنه خالونه مه وهه مرګی در يادکړه

هرڅوک خبر دي چې ليلا لري کاږه باڼو ګان
نادانه ته ډولونه مه وهه مرګی درياد کړه

لوېدلی زړه بيدار وي تل حماسي ترانې
داسندريز زورونه مه وهه مرګی درياد کړه

دخدای دپاره دعشقي ټوټو ليکنو په تېغ
نور دا تنکي ذهنونه مه وهه مرګی در ياد کړه



ښاغلي الهام دخپل اولس ديني او ملي ارزښتونو ، نفسياتو او په تېره اوسنۍ بدې ورځې ته په پام سره دا موضوع په ډېر جديت سره بيا بيا راپورته کړې ، چې آخر زموږ شاعران ولې دساندو په ځای سندرې وايي ، په داسې حال کې چې اولس په وينو کې لامبي ، کورونه په کنډوالو بدليږي ، خويندې ورارې او ميندې بورې کيږي ، مګر شاعر لالا لکه ددې وطن او اولس له غميزې ناخبر او دکومې بلې ګرې مخلوق چې وي ، دغم په ټغر دعشق او شهوت بوللې غږوي ، او هغه هم له دومره افراط او مبالغې سره چې نه يې زموږ ديني معتقدات منلی شي او نه يې هم افغاني نفسيات.



له همدې ځايه ده چې ښاغلي الهام معاصر د مجازي عشق په خم کې لويدلی شاعر بيا بيا او له مختلفو جهاتو څخه خپلو ناسم دريځ ته متوجه کوي ، ترڅو يې که خدای کړي ويده ضمير ولړزيږي او لږ خپل سر ګريوان ته کړي.

ښاغلی الهام دخپل پتمن اولس ديوې پتمنې لور په نمايندګۍ معاصر شاعر داسې مخاطبوي:

شاعره ! دوارې دی خطا سه چاليدلې نه وم
ومه غوټۍ دپاڼو منځ کې غوړېدلې نه وم

تا ليوني کړل ځوانان زما دښنو خالونو پسې
باورمې دی نه لوټيدم که تا ستايلې نه وم

دګلابي شونډو په رنګ مې اشعار تا وليکل
مسکا مې تا دکړس خندا کړه خنديدلې نه وم

له پټ رخساره مې پلو تا رانه ليری کړلو
زه خو په چم کې هم په لوڅ مخ چيرې تللې نه وم

زمادپايزيب شرنګې خو تا ترخلګو ورساوه
ما خو انګړ جارو کاوه څه ګډيدلې نه وم

بې باک شاعره !
الهامونه له شيطا نه اخلې
لا به مې وړاندې
وای
ترټلې
پوهيدلې
نه وم

د ښاغلي الهام نور موضوعات هم نوي دي ، نوموړي په حمد ، نعت ، موعظې او حماسه سرايي سربيره مختلف سياسي او اجتماعي موضوعات دخپل شعر په لمنه کې رانغاړلې دي .

که الهام خپل دشعر سفر همداسې جاري وساتي ، لرې نه ده چې نوموړی ديوه وتلي او ټولمنلي شاعر په توګه راڅرګند شي ، چې په دې توګه کولای شي ، خپل دين ، امت او اولس ته دسترو معنوي خدمتونو جوګه شي.

په همدې هېله

# په انګولا کې د مسلمانانو پر ضد دولتي پرېکړه او د اسلامي نړۍ حیرانونکې چوپتیا

حسن مومند

انګولا د جنوبي افریقا تر ټولو کوچنی هېواد دی؛ د بحر اقیانوس په څنډه پروت دا هېواد ،دنیمبیا ،کانګو او زیبیانو مي هېوادونو سره ګډې پولې لري ، لونډا یې پلازمېنه ده، په ۲۰۱۱ کې پدې هېواد کې د ترسره شویو سر شمېرنو له مخې د دې هېواد نفوس کابو ۱۸ میلیونو ته رسېدلو ؛ دلته د کاتولیک او پروټسټنټ مسیحیانو اکثریت دی خو له مسیحیانو پرته هم پکې له زرو زیاتې فرقې شتون لري.

پدې هېواد کې د(اسلامک کمیونټي آف انګولا نومې د مسلمانانو د ټولنې له لورې د ترسره شویو سروېګانو نه معلومه شویده چې دلته د مسلمانانو شمېر **۵** سوو زرو ته رسېدلې ده چې زیاتره یې ځایې خلک دي او په لږ شمېر کې پکې د لبناني نسل او شرقي اروپا نه راغلي خلک هم شامل دي خو د دې هېواد دولت عمداد د مسلمانانو شمېره کمه ښايي او وایې چې د دې هېواد د نفوس یوازې ۳٪ وګړي مسلمانان دي چې شمېر یې د ۸۰ او ۹۰ زرو په منځ کې دی ؛ دانګولا دولت د دې لپاره د مسلمانانو شمېر ه کمه څرګنده وي چې مسلمانان پدې هېواد کې قانوني حیثیت له لاسه ورکړی ځکه چې د انګولا دولت لا له وړاندې دیوې مذهبي ډلې په حیث د مسلمانانو د قانوني وجود د له منځه وړلو په موخه دا قانون جوړ کړی چې یوازې هغه مذهبي ډلې ته به پدې هېواد کې قانوني حیثیت ورکول کېږي چې شمېر یې لږ ترلږه ۱۰۰ زرو ته رسېږي.



**۵** سوه زره ښه ستره شمېره ده خو دا چې د دولت له لورې د جوماتونو جوړولو اجازه په ډېره مشکله ورکول کېدله نو دا دومره ګڼ مسلمانان په ټول هېواد کې ډېر کم جوماتونه لري چې اسلام او مسلمان دښمنه متعصب مسیحي دولت په همدې کم تعداد کې دا جوماتونه هم اوس نه شي زغملای ،د دې ټولو جوماتونو د نړولو حکم یې کړیدی د دین په حیث یې په اسلام بندیز لګولی او د مسلمانانو ټول مذهبي فعالیتونه یې بند کړیدي.

هسې خو له تېرو **۳** کلونو راهیسې پدې هېواد کې د مسلمانانو لپاره حالات خراب دي ورته د شک او نفرت په نظر کتل کېږي او مسلمانانو ته د روانی تکلیفونو ورکولو خبره دې حد ته رسېدلې ده چې دولت او نامسلمان ولس

دواړه په يوه خوله وايي چې اسلام کوم مذهب يا دين نه بلکې يوائې يو مکتب فکر دی.

په تېر کابو يو نيم کال کې دوحشي بودايانو په لاس په برما کې دنېږدې ۴۰ زرو بې ګناه وژل شويو مسلمانانو په وينو لا دبرما ځمکه سره ده ،دلته د ۱۰ زرو نه زيات ورک شوي مسلمانان لاهم ندي موندل شوي ؛ يو په بل پسې داجتماعي قبرونو موندل کېدلو لړۍ لا روانه ده ؛ له پيړيو پېړيو راهيسې دلته دمېشتو مسلمانانو نه اخستل شوي تابعيت لا بېرته ندی ورکړل شوی او نه هم دا مظلوم مسلمانان دخپل هېواد قانوني اوسېدونکي ګڼل شوي ؛دهېواد نه دمسلمانانو کډه کېدو ته داړ ايستلو لړۍ لا نده تم شوې ؛د بودايي فوځ او ولس له لورې دمسلمانانو د ابادو ځمکو او کورونو عصبولو او ناآبادو دښتو او ځنګلونو ته يې شړلو سلسله هم لا نده ودرېدلې ، دمسلمانانو مظلومې اوښکې لاندي وچې شوي او نه يې هم دبې چارګۍ او بې وسۍ آهونه ودرېدلي دي ،دخونخوارو بودايانو په لاس رنګ شوي او سوځول شوې مدرسې او جوماتونه دمسلمانانو په ضعف ژړا کوي ، خپل انتقام غواړي ،دحال په ژبه يې ټوله اسلامي نړۍ چيلنج کړې ،ورنه بيا ژوند ،زوړ حالت او مقام غواړي خو متأسفانه چې اسلامي نړۍ دبرما په اړه دمجرمانه غفلت او شرم نه ډکې چوپتيا ښکار ده او له غيرتي مجاهدينو او په نړۍ کې د دردمنو عامو مسلمانانو پرته ددولتونو په سطحه يو دولت هم دبرما دکمزورو او مظلومو مسلمانانو په غم او درد کې ځان شريک نکړ نو ځکه اوس دافريقا يو کمزوری هېواد انګولا چې ګوک يې لا په هېوادونو کې نه شمېري داسلام او مسلمانانو پرضد په دولتي سطحه په ډېرې سپين سترګۍ دومره ستراقدام کوي چې ړومبی دټولو جوماتونو دتړلو او بيا يې دړنګولو حکم کوي او ترڅنګ يې دنړۍ ترټولو ستر او يوائيني حق دين ته ددين دحيثيت ورکولو نه هم انکار کوي او دمسلمانانو په هرډول فعاليت بنديز لګوي.

دروان کال داکتوبر په ۳ مې نېټې دانګولا دولت اعلان وکړ چې دي هېواد ته دمسلمانانو راتلل او پکې يې شتون مور نه خوښو او نه هم دمسلمانانو جوماتونو ته قانوني حيثيت ورکولو ته تيار يو ،ددولت ددې اعلان نه پس دهېواد په مختلفو ښارونو کې ښار واليوو دجوماتونو دورانولو لپاره پلان جوړ کړ او چې کله داکتوبر په روستيو ورځو کې دانګولا دکلتور وزير اعلان وکړ چې:انګولا کې نور دجوماتونو شتون دزغم وړندی او اسلام (نعوذبالله من ذلک ) کوم دين يا مذهب ندی بلکې دا دځانګړې فکر لرونکې يوه فرقه ده ، ،

دکلتور دوزير دهمدې اعلان سره سم په پلازمېنې کې له دوه جوماتونو پرته دهېواد ټول جوماتونه دلمونځ کوونکو پرمخ وتړل او دورانولو لړۍ يې هم پيل کړه په پلازمېنې کې چې سمدستي لا دوه جوماتونه دلمونځ کوونکو پرمخ خلاص دي نو ددې لپاره ندي چې ګيني ددې دواړو جوماتونو شتون په هېواد کې دزغم وړ دی بلکې دنړۍ دتېرايستلو لپاره دا دواړه لاروغ پرېښودل شوي چې که ددې نامعقوله او ناقانونه اقدام پرضد په نړۍ کې اعتراض راپورته شي نو دانګولا دولت به همدا دوه جوماتونه نړۍ ته ورښايي او وايي به چې نه يې جوماتونه تړلي او نه يې هم رنګ کړيدي.

دا خبره اوس ټولو ته روښانه شويده چې انګولا دافريقا له هغه نا اسلامي هېوادونو څخه يو دی چې اسلام پکې په ډېرې تېزۍ خپرېږي ؛ داسلام همدې تېز خپراوي مسيحي دولت او ولس سخت ورخطا کړيدي نو فکر کوي چې دمدارسو او مساجدو په ورانولو به ګيني داسلام دخپرېدا مخه ونيول شي ځکه يې دمساجدو او مدارسو دورانولو احمقانه پرېکړه وکړه ، اسلام يې په هېواد کې ناقانونه وګرځاوه او دمساجدو او مدارسو په ورانولو يې پيل وکړ.

دمسلمانانو دټولنې يو مشر داودجاه وايي چې تر اوسه دولت دمسلمانانو ۱۵ مدرسې او ۸۰ جوماتونه په شهادت رسولي دي او ۳۲۰ جوماتونه يې دلمونځ کوونکو پرمخ تړلې دي.

دانګولا دولت به فکر کوي چې دجوماتونو او مدرسو په شهیدولو به پدې هېواد کې داسلام دتېز رشد او خپراوي مخه ونیول شي خو حقیقت دا دی چې دا ډېر دحماقت او جهالت نه ډک فکر دی، تاریخ ګواه دی چې داسلام او مسلمانانو پرضد دتشدد او ظلم له لارې کله هم داسلام مخه نده نیول شوې بلکې داسلام پرضد دتشدد په صورت کې اسلام لازیات خپور شوی ، رشد یې موندلی دی؛ دمسلمانانو خپل دین سره خواخوږي او مینه ډېره شوې ، په غافلو مسلمانانو کې دیني بیداري رامنځته شوې ،خپل دین ته مسلمانان رانېږدې شوي ،دیني لار ښوونې پکې عامې شویدي او دخپل دین نه دځان جارولو احساس پکې قوي شویدی چې افغانستان او دافغانستان تېر کابو ۳۵ کلن جریان یې ژوندی بېلګه ده.

روسان دلته داسلام او مسلمانانو دله منځه وړلو او دخپلې کمونیستي کفري مفکورې دنافذولو لپاره راغلي وو او ددې هدف دلاسته راوړلو لپاره یې پر افغانانو بې ساری ظلمونه وکړل خو نه اسلام له منځه ولاړ او نه هم مسلمانان بلکې پخپله شوروي اتحاد دلته دشرمونکې ماتې په نتیجه کې له منځه ولاړ افغانانو ډېر دیني رشد وکړاو په معنوي لحاظ یې ډېر زیات څه ترلاسه کړل ،دین په عملي ژوند کې ژوندی شو دیني علوم عام شول ،دجهاد او هجرت فریضه ژوندۍ شوه ،ددین لپاره دقربانۍ ورکولو احساس پیاوړی شو.

همدا راز دامریکا په مشرۍ کې صلیبي لښکرو هم پر افغانستان داسلام او مسلمانانو دله منځه وړلو او دلته دخپل غربي بربنډ کلتور دخپرولو لپاره یرغل وکړ خو په تېرو ۱۲ کلونو کې دکفري لښکرو دسترې ځاني ضیاع ،مسلسلو هڅو او پدې لار کې دسونو ملیاردو ډالرو دمصرفولو سره سره هم آیا اسلام یا مسلمان له منځه ولاړل؟ نه اسلام له منځه ولاړ او نه هم مسلمانان بلکې دیني او جهادي روحیه په خلکو کې دومره قوي شوه چې په برکت یې دلته راغلي ټول کفري ځواکونه په ګونډو او ډېرې سترې ماتې سره مخامخ شول.

نو که اسلام دښمنه کفري نړۍ دا فکر کوي چې دنا اسلامي نړۍ په ځنې هېوادونو کې دمسلمانو مېرمنو دحجاب په بندیزلګولو ،په اروپا کې دجوماتونو دمنارو په ړنګولو دنړۍ په ګوډ ګوډ کې دمسلمانانو په بې رحمانه قتل عام او دمسلمانانو دجوماتونو په بندولو او ړنګولو به اسلام له منځه ولاړ شي ، مخنیوي به یې وشي او یا به دالله اکبر نارې بندې شي نو دا دکفر ډېر دناپوهۍ نه ډک فکر او دحقایقو نه سترګې پټول دي.

دفطرت نه په بغاوت کې ترآخري سرحده رسېدلي انسانان اوس بېرته دفطرت اصولو ته راګرځېدلي دي ،دبې لاریتوب په تاریکو لارو تللي انسانان چې په ژوند کې داطمینان دنعمت نه په تمامه معنی بې برخې دي اوس ورته دځان وژنې یا اسماني دین اسلام قبلولو پرته بل هیڅ لاره نده ورپاتې ، داطمینان او سکون نه بې برخې دې انسانانو زړونو ته چې داسلام حقانیت ورننوځي او داسلام قبلولو نه پس داطمینان او سکون دستر نعمت نه برخمن شي نو بیا دسر ورکولو ته تیارېږي خو داسلام نعمت له لاسه نه ورکوي ؛ اسلام یواځینې هغه دین دی چې شمله یې نه کله ټیټه شوې او نه به ټیټه شي ؛ ددې دین اصیل بچیان چې په مرګ کې خپل ژوند ویني ددې دین مخنیوی نه کله شویدی او نه به وشي ؛دالله اکبر په نارو بندیز لګوونکي له دې غافل دي چې ددې دین منونکي دسلو تورو لاندې او ددار په تختې هم دا ناره نه هېروي ،دچا دژوند په اهدافو کې چې ددې نارې پورته کول وي هغه به دا ناره ولې هېروي ؟او کومې نارې ته چې غرونه او سمندرونه نه شي ټینګېدای دانسانانو په لباس کې دا وحشي ځناور به ورته څه ټینګ شي او څرنګه به پرې بندیز ولګوي ؟

متأسفانه چې ددې نارې دپورته کولو لپاره مسلمان ملت لا راټول شوي او متحد شوي ندي ؛که مسلمان ملت متحد او متفق وای صلیبي ځناورو به مو یو په بل پسې هېوادونه نه وای قبضه کړي ،په سلګونو زرو خویندو ورونو به مو دوحشي کفارو په زندانونو کې دمظلومیت شپې او

ورځې نه تېرولای ؛نه به مو دنړۍ په ګوټ ګوټ کې په بې رحمانه ډول دميليونونو خويندو ورونو وينې تويدای او نه به مو دحجاب په جرم باعفته خويندې دتشدد او ناوړه سلوک ښکار کېدای ، نه به مو په تورو شپو کې کفري اشغالګرو کورونو ته درااوړېدلو جرأت کولای او نه به همدا موږ اړوای چې پرکورونو مو دبمباريو په نتيجه کې دخپلو مېرمنو او کوچنيانو دبدن شيندل شوي اندامونه راټول کړو ؛ نه به چا دا جرأت کولای شوی چې په دين مو بنديز ولګوي او يا مو جوماتونه ړنګ يا بند کړي.

زموږ ايمان دی چې کله مسلمان ملت متحد ،ديوصالح ،خدا پرست ،او پردين او ايمان مين قيادت راجمع او دالله اکبر ناره پورته کړي نو ددې نارې دجلال څپې به ددې نارې هر دښمن دسېلاب دځګ په څېر لاهو او دشکست او هلاکت سترو کندو ته به يې وغورځوي نه به څوک نجات ورکونکی مومي او نه هم دپناه ځای دالله دښمنانو ته په شکست ورکولو کې به ټول کائنات دمسلمانانو سره مله وي او هر شجر او حجر به مسلمان ته دخدای دښمن ورښايې او دوژلو دعوت به يې ورکوي ،هغه مهال به بيا دالله اکبر نارې پورته او ددوئ ټولو پليت ارواح به دسجين کندې ته رسېدلي وي.

که کفر ګمان کوي چې دمدارسو او مساجدو په ړنګولو او دجوماتونو په بندولو به ژمن پتنګان دتوحيد دشمعې نه ځان جارول پرېږدي ،داسلام درشد او هدايت رڼا به تته او يو رب ته دسجدو لړۍ به بنده شي نو دا دوئ دحماقت نه وراخوا دليونتوب فکر دی ،تاريخ ګواه دی دمسلمانانو پرضد دظلم ،جبر او ستم ډېرې سترې لړۍ تېرې شوي دي خو يو فرعون هم پدې ندی توانېدلی چې يو رب ته له سر ټيټولو څوک واړوي ،داسلام اصيلو بچيانو دبارودو په لوخړو او دمرميو په باران کې سجدې ندي پرېښې او نه هم دزولنو په شړنګار او دزندانونو په حصار کې ؛ دا لړۍ به تر هغې ژوندۍ وي ترڅو چې ددنيا نه دټولو مسلمانانو دتللو او پربدترينو خلکو دقيامت قائمېدلو وخت نه وي رارسېدلی.

## چیزهایی که در مورد کالاشنیکوف نمی‌دانستید

میخائیل کالاشنیکُوف که بیشتر نامش با تلفظ اشتباه کلاشینکَف مشهور شده است در سن ۹۴ سالگی از دنیا رفته است. او مخترع سلاحی است که بیشتر از هر اسلحه دیگری در دنیا باعث مرگ آدمها شده است. هر چند دیگر کمتر کسی است که در دنیا نام کلاشینکوف را نشنیده باشد اما هنوز مواردی هست که خیلی‌ها از آن بی‌خبرند.

### سرلشکری به نام کالاشنیکُوف

میخائیل کالاشنیکُف یا همان کلاشنیکف خودمان با وجود آنکه جایزه های مختلفی را از مقام های مختلف روسیه دریافت کرده اما هیچ وقت پول زیادی از اختراع مشهور خود یعنی همان سلاح AK-٤٧
به دست نیاورده است. او در هفتاد و پنجمین سالگرد تولدش توسط بوریس یلتسین، رئیس جمهور وقت روسیه به درجه سرلشگری ارتقا یافت.

### تقصیر آلمان ها بود

مخترع مشهورترین مسلسل جهان در سال ۱۹۳۸ برای خدمت به ارتش سرخ رفت و از همان زمان به خاطر علاقه اش وارد کارهای فنی تانک شد. اما شاید آلمان ها را بتوان عامل اصلی طراحی و ساخت کلاشینکوف دانست. در سال ۱۹۴۱ در جریان جنگ جهانی دوم تانکی که کلاشینکوف در آن بود هدف قرار گرفت و او مجروح شد. در زمان بستری بودن در بیمارستان به خاطر همین جراحت او طراحی سلاح مشهورش را شروع کرد. او بعدها که برخی از او به خاطر ساخت سلاحش انتقاد می کردند آلمانی ها را علت اختراعش دانست و گفت: هدف من این بود که سلاحی بسازم که با آن بتوان از وطنم دفاع کرد. مقصر من نیستم که این سلاح در بسیاری از نقاط آشوب زده استفاده شده. به نظرم سیاست های آن کشورهاست که باید مورد سرزنش قرار گیرد و نه طراح سلاح.

### در پرچم ملی یک کشور

مسلسل اتوماتیک کلاشینکف در کشورهای مختلف دنیا مورد استفاده قرار گرفته است و آمارها نشان می دهد حداقل ۱۰۰ میلیون قبضه از آن تاکنون در جهان تولید شده است. خود کلاشنیکف گفته است که در جنگ ویتنام سربازان آمریکایی مسلسل های ام-۱۶ خود را رها می کردند و کلاشینکوف نیروهای ویتنامی را به خاطر راحتی کار و گیر نکردن سلاح بر می داشتند! در نبردها آن قدر کلاشینکوف مشهور بوده که در پرچم ملی موزامبیک تصویر آن دیده می شود. کلاشینکف در نبردهای این کشور برای استقلال از پرتغال نقش مهمی داشته است.

### نام پسر: کلاش

در خیلی از کشورهای دنیا از مخفف کلاش یا کالاش برای نام اسلحه مشهور میخائیل کالاشنیکُف استفاده می کنند اما این نام در برخی کشورهای آفریقایی اسم محبوبی برای پسرها شده است.

### از صدام تا اسامه بن لادن

تصاویر اسامه بن لادن و صدام حسین با AK-٤٧ را خیلی ها دیده اند. صدام یک کلاشینکف طلایی داشته که نیروهای آمریکایی آن را با خود از عراق خارج کردند. برخی گزارش ها هم نشان می دهد که در زمان حمله نیروهای آمریکایی به شهر ابیت آباد اسامه بن لادن می خواسته از یک کلاش استفاده کند که مهلتش را پیدا نمی کند.

حا۔احمد غوري

# غوږ نیونه

غوږ نیونه شرعاً یو ناوړه او ممنوع عمل دی، د چا خبرو ته په پټه غوږ نیونه یو شیطاني کار دی، ویل کیږي زموږ د ګران پیغمبر له مبعوث کیدو مخکې به شیطانانو په ځانګړي ترتیب ځانونه د اسمان اطرافو او اکنارو ته ورسول او هلته به یې د ملائکو خبرو ته غوږ نیولی وو، وروسته به یې له ځانه ورسره ډیري خبري ګډي کړې او د نجومیانو په ذریعه به یې په خلکو کې تشهیر کړې. خو کله چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مبعوث شو، نو د دوی د دې کار مخه ونیوله شوه. الله فرمایي: انا زین السماء الدنیا بزینة الکواکب، وحفظا من کل شیطان مارد، لایسمعون الی الملاء الاعلي و یقذفون من کل جانب، دحورا ولهم عذاب واصب الا من خطف الخطفة فاتبعه شهاب ثاقب

په دې کښې شک نشته چې ملائکو ته د شیطانانو د غوږ نیوني کار ته د پای ټکی کېښودل شو، که بیا هم دوی د خبرو د اوریدو کوشش وکړي، نو د شهاب ثاقب ګرندی ګزار پرې کیږي.

شیطانان په خپله غوږ نیوني کې پاتي راغلو، خو په نړیواله کچه د دوی د غوږ نیوني دنده اوس د دوی خاص شاګردانو په ځانګړي توګه امریکیانو په غاړه اخستي ده، دوی د نړۍ د مختلفو هیوادونو ټیلفوني او کمپیوټري اړیکو ته غوږ نیسي او له ځانه سره یې د آواز او لیکني په بڼه خوندي کوي.

نور هیوادونه به پرېږدو، خپل هیواد افغانستان ته به راشو، په افغانستان کې امریکایانو او نورو ګڼو هیوادونو د طالبانو د ټیلیفونونو د کشفولو او د هغوی د خبرو د اوریدو ځخه پرته د خپلو دوستانو او د کرزي اداري لوړپوړو چارواکو ته هم غوږ نیولی، د هغوی ټیلفوني اړیکي یې اوریدلي او ثبت کړي دي.

امریکایانو همدا ثبت شوي ټیلفوني خبرو ته ځانګړې طریقه کار وضع کړې، د دې کار لپاره یې ګڼې اداري فعاله کړي او مهم اسباب او آلات یې په اختیار کې ورکړي دي.

دوی په لومړي قدم کې خبري ثبتوي، ګرندۍ استخباراتي ګټه ترې اخلي، بیا یې د راتلونکې لپاره د آواز له بڼې ځخه پرته په لیکلي بڼه هم خوندي کوي. په لومړي قدم کې د همدې ثبت شوي ټیلفوني خبرو د کمپوز او لیکنې او په دوهم قدم کې انګریزي ژبې ته د ژباړي لپاره له ګڼو کمپنیو سره قراردادونه کوي.

د یو راپور له مخې د افغانستان او پاکستان په مختلفو ښارونو کې ګڼو کسانو له خارجیانو سره همداسي قراردادونه کړي، د قرارداد د ترلاسه کولو ځخه وروسته بیا همدا کمپنۍ ځانګړي ځای کې دفتر جوړوي او هلته مختلف کمپوزرانو ته کار ورکوي، ترځو د هیڅ فون په ذریعه خبري واوري او بیا یې کمپوز کړي. یو کمپوزر جان فدا چې همداسي لیکنې یې کړي دي، وویل: موږ ګڼو کسانو به د مختلفو ټیلفونونو خبري کمپوز کولې، کله به د طالب چارواکو خبري وې، کله به بیا حکومتي چارواکو خبري وې، کله به بیا عادي کورنۍ خبري وې. هغه زیاته کړه چې هر خبرې فائل به د څو دقیقو لپاره په ځانګړي نوم باندي وو، بله برخه به یې بیا بلچا کمپوز کوله، نو ځکه به سړی د یو کس په پوره خبره نه پوهیدو. هغه زیاته کړه چې کله نا کله به د



لوړپوړو دولتي وزیرانو او چارواکو خبري هم وې، چې هغوی به له رسمي خبرو علاوه له خپلو ښځو او انډیوالانو سره ناپړیتي ویشتې. د هر فائل نوم به په عددي بڼه شفر کړ شوی وو، د خبرو په اوږدو کې به هم نومونه ترې حذف شوي وو، تر څو خبري کونکی ونه پیژندل شي، ولي موږ به په ډیر تکلیف سره کله نا کله چې آواز به مو په رادیو کې اوریدلی وو وپیژندل.

په روانه جګړه کې داسې فکر کیږي چې په افغانستان کې یوازې امریکایان د ټیلفوني خبرو اوریدو ته لیواله ښکاري، خو د یو راپور له مخې ځیني نورو هیوادونو هم ځانګړو مؤسسو او تنظیمونو ته پرمختللي وسائل ورکړي، تر څو هغوی په خپل دفتر یا کور کې د ځانګړي کسانو ټیلفوني خبري ثبت او اړونده هیواد ته یې ور واستوي.

له پورتني راپور څخه جوتیږي چې د افغانستان د مخابراتو وزارت فعالیت او کارکردګي ډیره زیاته کمزوري ده، هغوی نشي کولای د خپلو هیوادوالو تماسونه خوندي کړي او د اغیارو له شر څخه یې وژغوري، بلکې د دوی ټیلفونونه هم تر کنترول او څارنې لاندې دي، جان فدا کمپوزر زیاتوي چې د کمپوز په اوږدو کې په یو آډیو کلیپ کې د مخابراتو وزیر له یوې میرمنې سره سختې ناپړیتي وویلې چې په لیکلو نه ارزي.

کمپوزر دا هم زیاته کړه، چې له هیډفون څخه کمپوز کول ډیر ستونزمن کار دی، ځکه په دوه میاشتو کې سړي ته دماغي تکلیف پیدا کیږي، وایې موږ په دوه میاشتو کې چې څو مره پیسې وګټلې هغه ټولې د دماغي ډاکټر نذر شوې.

له پورتني راپور څخه جوته شوه، چې امریکایان هیڅ قسم قانون ته احترام نه لري، نه د هغوی په قانون کې د لاسپوڅو څه اهمیت شته، بلکې هغوی خپلو موخو او ګټو ته وفادار دي، که نړیوال یا د دوی دوستان هر څومره د دوی دا ناوړه عمل وغندي، دوی بیا هم ترې لاس په سر کیږي نه. د یو بل راپور له مخې ویل کیږي چې امریکایان په ګڼو ځایونو کې د قمر مصنوعي په ذریعه شکمني سیمې څاري او خپل شومو موخو ته پرې ځان رسوي.

## دروغ مه وائئ، څو روغ پاتې شئ

نوې څیړنې ښیي، چې درواغ ویل هم په روغتیا ډیره بده اغیزه لري راپورونه وایي، امریکایي اروا پوهانو د خپلو څیړنو په ترڅ کې په ۱۱۰ کسانو معلومه کړه، چې دروغ ویل په روغتیا بده اغیزه لري.

د څیړنې پایلو ښوده، هغه کسان چې حتی له مصلحت آمیزه درواغو ویلو هم ځان ساتي د درواغجنو خلکو په پرتله ډیر لږ په سر درد ، اضطراب او حتی ستوني درد ناروغیو اخته کیږي او په مقابل کې یې هغوی چې دروغ وایي، ددغو ناروغیو کچه پکې زیاته ده. ..................

متخصصانو له څیړنې وروسته په خپله پایله اخیستنه کې په ډاګه کړه، په هماغه ډول چې میوې او سابه خوړل او سپورت له روغتیا سره مرسته کوي په هماغه اندازه د خولې کنترول او له درواغو ځان ساتل د بدن په روغتیا ساتلو کې مهم دي.

نوموړي رواني متخصصین سپارښتنه کوي، چې ټول خلک باید رښتیا ویلو ته اهمیت ورکړي او په خپل ژوند کې ترې کار واخلي.

دا متخصصان توصیه کوي، چې رښتیا ویونکي د درواغجنو په پرتله ډیر په خپل ځان باور او ډاډ لري او هر څوک چې لږ درواغ وایي، روغتیا به یې تر ډیرې کچې ښه او د ډاډ وړ وي.

# د جعلي دوا ګانو کثرت

قاري محمود غزنوي

تاسو به اوریدلي وي، چې په غټ شمیر افغانان د علاج او درملني لپاره په ستر مصرف بهرنیو هیوادونو لکه پاکستان، هندوستان، امارات او غربي هیوادونو ته ځي. د یو راپور له مخې په بهر کې په مجموعي توګه د همدې افغاني مریضانو ورځنی مصرف له سل میلونو افغانیو څخه زیات اټکل شوی دی. د میاشتني او کال حساب ورته تاسو وکړئ.

همدا کسان وایي: په افغانستان کې د سم علاج د نشتوالي له امله دوی بهرنیو هیوادونو ته مخه کړې ده. دوی وایي: موږ په افغانستان کې ګڼ ډاکټرانو ته مراجعه کړې، ولې د هغوی دوا زموږ مریض ته هیڅ ګټه نه ده رسولې، بلکې د پخوا په نسبت د مریض تکلیف نور هم اضافه شوی دی. دوی زیاتوي: په افغانستان کې ډاکټر راته ویل: ستاسو د مریض د ګردو تکلیف لري، ولې په بهر کې بیا د زړه مرض تشخیص شوی وي. یا دا چې: ستا د ملا هډوکې (مورې) نزدې شوي دي. ولې بهرني تشخیص ثابته کړي، چې د ملا مورې نه دي نږدې شوي، بلکې د تې بې له امله یې د ملا هډوکی تور شوي، د تې بې د اته میاشتو پرلپسې دوا خوړلو سره مریض روغ رمټ شوی. یا دا چې: ستا پښه یا لاس د سخت زخمونو له امله له منځه تللی باید کټ شي، ولې بهرني تشخیص په نتیجه کې لاس یا پښه په علاج جوړه شوې ده. یا دا چې ډاکټر په خپله ورته وینا کړې، مریض دې پېښور ته رسوه، داسې ګڼ نور.

همداسې دوی په بهرنیو هیوادونو کې هم زیاتې ستونزې لري. هلته د دوی په علاج او تګ راتګ زیات لګښت راځي. په ځینو هیوادونو کې د ترجمان نیول هم اړین وي، کله ناکله پرې هسې بې مطلبه او بې ګټې معاینات او ټسټونه د زیاتو پیسو په مقابل کې کوي، پولیس ترینه لوی لوی رشوتونه اخلي. موټروانان هم ترینه له حده زیاتې پیسې اخلي، کله ناکله د لارې په اوږدو کې د مریض مرض دوه برابره زیات شي. ځیني د نابلدي له امله له داسې ډاکټر سره مخ شي، چې ډاکټر د ډاکټر په نسبت قصاب زیات وي.

بل لوري ته په داخل کې چې له ډاکټر څخه بیا پوښتنه وشي، چې په تاسو څه شوي، چې د مریض درملنه نشئ کولای؟ هغوی وایي: موږ علاج په سمه توګه کوو، خو مشکل دا دی، چې په لابراتوارونو کې اړونده وسائل نشته یا غیر معیاري دي، په خپله د لابراتوار چلونکې هم مسلکیان نه دي، بلکې له پوره جهالت او بې علمۍ سره سره یې په جعلي اسنادو ځان لابراتوار ته رسولی وي او د غلط راپورونو، ټسټونو په ذریعه خلک له مرګ سره مخ کوي. همداسې دا ډاکټران شکایت کوي، چې موږ له خپل وسع او علم سره سم د مریض تشخیص په سمه توګه وکړو او هغه ته اړونده دوا ولیکو، خو د دولتي چارواکو د کمزورۍ او رشوت خورۍ له امله په بازار کې نوي فیصده دوا



ټوله جعلي او دوهم نمبر ده، مريض چې کله دوا رانيسي، نو ښکاره خبره ده چې مرض به يې زياتيږي او دوا به ورته هيڅ ګټه نه رسوي.

کله چې د لابراتوار مسئول کسانو نه پوښتنه وشوه، چې آيا رشتيا ستاسو سامان او آلات غير معياري دي؟ او دا چې تاسو مسلکي زده کړي نه دي کړي، نو هغوی وويل: نه صيب! زموږ لابراتوار کې ټول سامان او آلات معياري دي او موږ هم مسلکي زده کړې کړي دي، ګورئ دا مو اسناد، دا د صحت عامې اجازه، دا دولتي چارواکو جائزه، دا مو سابقه تجربه او دا دا... دوی په ډاکټرانو تور پوري کړو، چې جعلي اسناد يې جوړ کړي، علم او تجربه يې دواړه کم دي، يواځې د پيسو په راټولولو پوهيږي، نه زموږ راپور ګوري او نه پرې پوهيږي. کله چې موږ د دوی اسنادو ته ځير شوو، نو اسنادو په ډاګه چغې وهلې چې موږ په قصه خواني کې جوړ شوي يو، او دا چې دا مهرونه ټول جعلي دي. د لابراتوار د صفايي کوونکي له خولې ځخه نابيره دا الفاظ ووتو: ګڼ ډاکټرانو له خپل کلينک سره لابراتوارونو جوړ کړي دي، چې په هغې کې د همغه ډاکټر زامن، وريرونه يا نور خپلوان له کوم اهليت ځخه پرته د ليب تيکنالوجسټ په توګه کار کوي.

ډاکټرانو په دوا خرڅوونکو تور پوري کول، چې درمل يې جعلي او کمزوري دي، له همدې امله له دوا فروش ځخه داسي پوښتنه وشوه. ډاکټران وايې چې تاسو مريضانو ته د سمې دوا په ځای دوهم نمبر جعلې دوا ورکوئ، دا خبره تر کومه بريده رښتيا ده؟

دوا فروش: صيبه! که رښتيا را باندي وايې نو خبره دا ده، چې دواساز شرکتونه ډاکټرانو ته وخت په وخت درندې درندې تحفې او غټ غټ رشوتونه ورکوي، ډاکټران د تحفو په ذريعه هڅه وي، چې د همدې جعلي شرکتونو دوا خپلو مريضانو ته وليکي. تاسو به ډاکټران وينئ چې په ښه لوکس موټرو کې سپاره دي، يا يې قيمتي ساعت په لاس دی، يا آيي فون غوږ ته نيولی وي، يا په دفتر او کور کې يې قيمتي قيمتي ځيزونه ايښې وي، باور وکړئ، دا ټول د شرکتونو مرحمت او شفقت وي، چې دوی ته يې د جعلي دواګانو د خرڅيدو له امله ورکوي، تاسو يې په تسبو او مبارکو شکلونو باندي مه غوليږئ. باور وکړئ دا اوس د ژمې په را رسيدا سره همدې شرکتونو ډاکټرانو ته په لسګونو اتمات بخارۍ ورکړي دي، يواځې زموږ په واسطه په د دې سيمې په ډاکټرانو ديرش بخارۍ تقسيم شوي، په دې بخاريو کې تر ټولو ارزانه بخارۍ دوه ويشت سوه افغانۍ قيمت لري، همداسي ډاکټر ... چې په کومه ټوډې کې ګرځي هغه هم ورته شرکت ورکړي، د ډاکټر .... زوی چې کوم لپټاپ استعمالوي، هغه هم د جعلي دواګانو شرکت ورکړی، د .....ډاکټر آيي فون هم ما په خپل لاس ورکړی دی. د ډاکټر ... د مهمانخانې ټول سازاو سامان هم ورته شرکت اخستی، ډاکټر... چې د يوې اونۍ لپاره خارج ته له خپل فاميل سره په چکر تللی وو، هغه هم د شرکت له لوري ورته برابر شوی وو، نو تاسو فکر وکړئ، چې هغوی به ولي مريض ته اصلي درمل ليکي، که ډاکټران وغواړي په يوه مياشت کې د جعلي درملو مخه نيولای شي، که دوی د کمزوري او جعلي شرکتونو دوا ونه ليکي مريض به يې ولي اخلي. ګڼ درملتونونه خو په خپله ډاکټرانو جوړ کړي دي، همداسي د ډاکټرانو په ځير موږ هم په پيسو پسي ړانده يو، ځکه چې په اصلي دوا ګانو کې زموږ ګټه کمه ده خو په دوهم نمبر درملو کې زموږ ګټه تر سل په سلو هم زياته ده، له دې سره د جعلي دواګانو کمپنۍ هم موږ او ډاکټران نه هيروي، د زياتو دواګانو د خرڅيدا له امله موږ ته پوره پام کوي وخت په وخت راته انعامات را کوي، هغه دا خبره هم زياته کړه چې د اصلي دواوو په نسبت د دوهم نمبر دواګانو خرڅلاو ډير زيات دی، هغه وايې په وروستي ځل چې ما له کوم عمده فروش ځخه دوا راوړله نو د هغه او هلته نورو دکاندارانو ورځنی فروش سل سل لکه کلداري وو، ولې په هغه مارکيټ کې بيا د سمو دواګانو فروش بيا ډېر کم په زرګونو کې وو، هيڅ دکاندار له دوه درې لکه ځخه زيات فروش نه درلود. زما سر بيره هر ډاکټر صاحب او حاجي صاحب به جعلي دوا ګاني په خلاص مټ داسي اخستې، لکه چې دا يو اسلامي او شرعي حکم وي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم ته د خپل امت انحرافات معلوم وو، نو ځکه هغه (ص) فرمايلي دي: عَنْ أَبِي

هُرَيْرَةَ. أَنَّ رَسُولَ اللَّه – صلى الله عليه وسلم – مَرَّ عَلَى صُبْرَةِ طَعَامٍ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهَا فَنَالَتْ أَصَابِعُهُ بَلَلاً فَقَالَ « مَا هَذَا يَا صَاحِبَ الطَّعَامِ ». قَالَ أَصَابَتْهُ السَّمَاءُ يَا رَسُولَ اللَّه. قَالَ « أَفَلاَ جَعَلْتَهُ فَوْقَ الطَّعَامِ كَىْ يَرَاهُ النَّاسُ مَنْ غَشَّ فَلَيْسَ مِنِّى ». حضرت ابو هريرة رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی علیه وسلم د غنمو په ډيري تيريدو، لاس يې ډيري ته ورننويست، لاندي يې لوندوالی وموند، وې فرمايل: دا څه شی دي اې د غنمو د ډيري څښتنه؟ هغه وويل: باران پرې شوی اې د الله رسوله. رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: بيا لامده غنم ولې په سر نه ږدې چې خلک يې ووينې، چا چې دوکه او فريب وکړ هغه زموږ څخه نه دی.

علماوو فرمايلي دي دوکه حرامه ده، په دوا او درمل کې دوکه او جعل سازي کول ستر جرم دی، په ځينو هيوادونو کې د جعلي او دوهم نمبر دوا ورکول د اقدام قتل په قانون کې راځي.

لذا د دې مضمون په ذريعه له ټولو ډاکټرانو، د لابراتوار او درملتون له څښتنانو او په ځانګړي توګه له تجارانو څخه چې ځان ته مسلمان وايي غوښتنه کيږي، چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم له ارشاد سره سم له دوکې او جعلسازي څخه لاس په سر شي، دا زوريدلی اولس نور په مصيبت مه اخته کوئ، کنه د دنيا او آخرت له رسوايي او شرمندګې سره به مخ شئ. په دې جرم کې له فابريکې څخه واخله تر ډاکټر او درملتون پوري ټول ملامت او ګناهګار دي. تاسو ته به معلوم وي يا نه چې په هيواد کې غربت وروستي بريد ته رسيدلی، اکثر مريضان د خپل ځان يا د خپل مريض د علاج او درملنې په موخه د زيات غربت له امله پيسې پور کړي، خو تاسو يې د جعلي دوا په بدله کې ترې تر لاسه کړئ، د هغه مريض هم جوړ نشي، قرض هم پرې پاتې شي. نور مو خپله خوښه. الله تعالی فرمايي: ما اصاب من مصيبة فبما کسبت ايديکم (تاسو ته چې څه تکليف رسي، د خپل ناوړه عمل په پايله کې درته رسي) رحمن بابا وايي: کار د ګلو کړه چې سيمه دې ګلزار شي، اغزي مه کره پښو کې به دې خار شي، همداسي پښتنو متل دی: چې بد ګرځي بد به پرځي.

## د ګشنيزو خوړل د خولې او غاښونو د سالم ساتلو لپاره ګټور دي

د تغذيې متخصصان وايي، ګشنيز وړې سالمې ساتي او د غاښونو له خرابيدو هم مخنيوی کوي.

د يوناني طب له مخې ګشنيز په طبي بوټو کې حسابيږي او وچ او سوړ طبيعت لري

ګشنيز همدا راز معده هم پياوړې کوي او له خوړو سره د هغه خوړل له هضم سره مرسته کوي، په مينډو کې د پيو د زياتيدا سبب ګرځي او د غاښونو د درد د آرامولو لپاره د ګشنيز د دانو ژول ګټه لري.

له دې سربيره ګشنيز يو قوي اشتهاء راوړونکی هم ګڼل کيږي .

ګشنيز د خولې بد بوی هم لرې کوي او ډاکتران توصيه کوي چې د اوږې او پيازو له خوړو وروسته که په مناسبه اندازه ګشنيز وخوړل شي د خولې بوی ورکوي.

خو په ورته وخت کې داسې نظرونه هم شته، چې ګشنيز جنسي قوه کمزورې کوي او په ځانګړي ډول متهلينو ته د ګشنيز ډير خوړل ښه نه دي او بايد له احتياطه کار واخلي

## پاملرنه

هيڅکله هم د ويده کيدو په وخت کی خپل ګرځنده (مبايل) د بالښت لاندی مه ږدئ ځکه چې ډيری مبايلونه ددی وړ دی چې له ځانه څخه نه ليدونکی زيانمنی وړانګی خپری کړی چې قدرت يی تر ۹۰۰ ميګاهرزه پوری رسيږی او امکان لری چې مغزو ته شديد زيان ورسوی او يا هم د سر او عضلاتو درد پيدا کړی

# دوسوسي په دام کې ونه غورځو !!

ژ ـ لطیف عزم

د شریعت له نظره دوسوسي اصلي منشأ، شیطان او پټ دښمن ته ویل کیږي ، چې دانسان زړه ته لار مومي او هغه غیري معقولو او بد مرغه کړنو ته سوقوي ، ځکه دانسان زړه به یا د پرښتو کوروي او یاد شیطان ځاله، دزړه اینه دانسان اعمال ښکاره کوي چې یا به په رحماني وړانګو روښانه او پوښلي وي او یا به په شیطاني رنګ او بوي ککړه او ملوثه وي.

شیطان دخپلو نیرنګونو او دامونو په زریعه دحقیقت په لار کې ولاړوي ، ترڅو انسانان له صراط مستقیم څخه منحرف او په باطله سر کړي او هم دغه انحراف او ګمراهي ورته په ډول ډول تیرایستونکو چراغونو رنګینه او مزینه کړي او دګناه او جرم لار په نظر کې ورته ښکلي او دلچسپه وښيي.

د شیطان برنامي اصولا مخفي او مرموزي وي او انسان ته د خپلو پلیدو افکارو او خیالاتو په وړاندي کولو سره داسي ښودل غواړي چې ګواکي دا هرڅه خپله دانسان فکر او سوچ دي او انساني تدبیردي.

خلاصه دا چې چې شیطان په خپله هم مخفي او نامرئي وي او کړني او برنامي هم په پوښ او لفافي کې وړاندي کوي او هرکله چې انسان الله یاد او په زړه کې رحماني رڼاګاني بلي کړي ، شیطان ترینه تیښته کوي او ترهغو ورته نشي نیږدي کیدای چې هلته الهي شغلي موجودي او بلیږي.

۱ـ له نورو خلکو څخه د روحي ناپاکی په پلمه لیري ګرځي ، ۲ـ دعبادت په مهال په شکونو کې لویږي ، مثلا دلمانځه درکعتونو ، رکوع او سجدو په شمیر کې چې څو یې وکړل او پوره به یې کړي وي کنه ؟ همدارنګه دلمانځه په نیت کې هم تل په شک او تردید کوي او ژرېي نشي تړلی.

۳ـ دخپلو جامو په اړه تل په سوچ کې وي چې پاکي به وي کنه ۴ـ دکور او خوني دروازه به یې تړلي او قلف کړي وي کنه ۵ـ خپل ځان په هرڅه کې مجبور او محتاج فرضوي ، ۶ ـ دمسایلو او مشکلاتو په حل کې که څه هم هغه عادي وي خو ځان ته بیا هم لوی کړا وورکوي او همیشه دپیښو منفي اړخ سنجوي ۷ـ په خپلو ټولو کارونو کې له تلوار او عجلي کار اخلي ۸ ـ داسي بیهوده سوچونه وهي چې کیدای شي په دې نیږدي وختونو کې یې، ځوی ، پلار ، مور او ښځي ته مرګ ورسیږي ، یا په کورکې یې اوروليګیږي ، یازلزله وشي او........ ۹ ـ دهغو اعمالو مرتکب ګرځي چې دانسان له وس څخه بهر وي ، مثلا جامي ، اندامونه او لوښي دومره مینځي چې رنګ او شکل یې په بل مخ اړوي خو دده په نظر بیا هم پاک نه وي ۱۰ـ په مسایلو کې له سختي او شدت نه کار اخلي ، منفي ګرایی ، دبل چا عیبونه ویل ، له خپل اولاد ، میرمني او خپلوانو دومره شکایتونه کول چې په تدریجي ډول نیږدي وي دهغوی ترمنځ دخپلوي او دوستي رشتي وشلیږي.

## دوسوسو عوامل



دوسوسي عمده عامل خپله وسواسي کس دي ، دخپل ځان په محبت کې ډوب او دالله له ذکر او فکر څخه غافل وي او دالله له لطف او مرحمت څخه دشيطان دوکو او فريبونو ته پناه وروړي ، چې دا په خپله دوسوسي ايجاد او په رښايي دتيار وو خورول دي.

ځيني خلک ددي پرځای چې دژوند په امورو کې دقت په کاروا چوي له وسوسي نه استفاده کوي ، دبيلګي په ډول داجناسو په خريداري کې دومره سختي کوي چې نه يواځې قيمتي وخت له لاسه ورکړي ، بلکي ډيرځله ټوله اراده بدلوي او خالي لاس بيرته راګرځي ، همدارنګه دکوژدي او ميرمني په انتخاب کې دومره وسواسي او متردد وي چې حتی دځواني رنګيني شيبي او خوږ منګ يې هم له لاسه ووځي او بيا هم دخپل مطلب ځيز ترګوتو نکړای شي !

## دوسوسو څو بيلګي :

الف: هغه وسوسه چې ډيره په وسوسي خلکو کې شايع او عامه ده هغه په غُسل او اوداسه کې شک او شبه ده ، دوی چې کله اودس کوي خپل اندامونه دومره مينځي ته به وايي چې خپل پوستکی په بل مخ اړول غواړي ، دوي په دې فکر چې اندامونه ډير او مکرر و مينځي او شک ليري کړي ، دجمعي فضليت هم له لاسه ورکړي او دثواب پرځای دګناه او اسراف مرتکبين وګرځي او ددې ايت کريمه تر وعيد او حکم لاندي راشي چې الله تعالی فرمايي (إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ) ؛ په رښتيا چې تبذير او اسراف کوونکي دشيطانانو وروڼه دي.(اسراء:٢٧)

همدارنګه حضرت رسول اکرم صلي الله عليه وسلم فرمايي: «إِنَّ لِلوُضُوءِ شيطاناً يقال لهُ الولهانُ فاتقُوا وَسوَاس الماء» ؛دا وداسه په وخت کې يو شيطان دی چې هغه ته ولهان ويل کيږي ، نو دهغه له وسوسو څخه ځان وساتی .(ترمذي)

ب: دبې اودسی وسوسه ؛دشيطان کار دمسلمان ازارول او په تکليف اخته کول دي ، ځيني خلک سره لدې چې اودس لري او هيڅ کوم عوارض نه وي ورته پيښ خو شيطان ورته وسوسه غورځوي چې اودس دي نشته او مات شوی ، حضرت رسول اکرم صلي الله عليه وسلم ، ددغې وسوسي ددفع او درمل لپاره داسي فرمايي: «إذا أتاه الشيطان فقال إنک قد أحدثت فليقل کذبت إلا ما وجد ريحا بأنفه أو صوتا بأذنه» ؛ هرکله چې شيطان يوه کس ته داوسوسه په زړه کې وغورځوله چې بې اودسه شوی يې ، په مقابل کې دي شيطان ته ووايي چې ته دروغ وايې ، ترهغو پوري يې چې بوی دبې اودسۍ ترسپوږمو شوی نه وي او اواز دبې اودسی يې ترغوږ شوی نه وي.(ابوداود)

ج: په لمانځه کې وسوسه ؛لمونځ دشيطان له مهمو ښکارځايونو څخه دي ، کله چې بنده لمانځه ته پورته کيږي نو مسلمان په سرګرداني کې غورځوي او نه پوهيږي چې څو رکعته يې کړي ، حضرت رسول اکرم صلي الله عليه وسلم په دې اړه داسي فرمايي: «إن أحدکم إذا قام يصلي جاءه الشيطان فلبس عليه حتى لا يدري کم صلى فإذا وجد ذلک أحدکم فليسجد سجدتين وهو جالس» ؛کله چې يو له تاسې لمانځه ودريږي ، شيطان ورسره په لمانځه کې داخليږي ، او دلمانځه امور ته مشتبه ګرځوي ، په دې ډول چې نه پوهيږي څو رکعته يې وکړل، کله چې دغسي شک چاته وغورځيد دلمانځه په پای کې دي دسهوي سجده وکړي.(متفق عليه)

د: ځيني وخت دشيطان وسوسي خطرناک حد ته ورسيږي او دمومن دعقيدي تر بريده ځان ورسوي، مثلا دمومن په زړه کې شيطان وسوسه اچوي چې العياذ بالله دقيامت راتلل به يقيني وي کنه ،دوزخ او جنت او دحساب او حشرورځ به وي کنه او داسي نور ...... په دې کې شيطان يو مومن په وسوسو کې ګرفتار ول غواړي ؛ خو دشريعت حکم دادی چې ترڅو يې په دغو وسوسو عمل نه وي کړی او يا يې په ژبه تلفظ نه وي کړی په دغو خيالاتو او وسوسو ايمان ته زيان او تاوان نه رسيږي او مومن دايمان له دايري څخه نه ووځي.

لکه چې په دې باب حضرت رسول اکرم صلي الله عليه وسلم ارشاد مبارک دی.

عن ابی هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلي الله عليه وسلم: «إن الله تجاوز عن أمتي ما وسوست به صدورها ما لم تعمل أو تتکلم» ؛ له حضرت ابوهريره

رضي الله عنه څخه روایت دي چې رسول اکرم صلي الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی زما امت د هغو خیالونو او وسوسوله امله چې د هغوپه زړونو کې راځي معاف کړې او پرهغوی به ترهغو مؤاخذه نه وي ترڅو یې چې پرې عمل او په ژبه تلفظ نه وي کړی.(متفق علیه)

کله ناکله د انسان په زړه کې داسې نامطلوبې او له تحمل څخه وتلي او حتی ملحدانه وسوسي او پوښتني ځای ونیسي چې د مومن زړه او مغز له اضطراب سره مخ کوي، خو مهربان رب جل جلاله بیا هم د خپلې لورینې او مرحمت څادر له مومن څخه نه لیرې کوي ترڅو چې د ګمراهی قصدي او عملي هلاکت ته ورټوپ نکړي، له حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی ( جاء ناس من أصحاب النبي صلي الله علیه وسلم فسألوه: إنا نجد في أنفسنا ما یتعاظم أحدنا أن یتکلم به. قال: «وقد وجدتموه؟» قالوا نعم. قال: «ذاک صریح الإیمان» ؛ یو شمیر صحابه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل چې زمونږ حال داسې دی چې کله ناکله داسې وسوسې زمونږ په زړونو کې پیدا کیږي چې هغه په خولې راوړل مونږ ته ناشوني او سختي دي، رسول کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې ایا ستاسې حال همداسې دی ؟ هغوی ورته وویل چې هو !زمونږ حال همداسې دی، ورته یې وفرمایل چې داستاسې د صریح اوخالص ایمان نښه ده.(مسلم)

حضرت امدادالله مهاجر مکی رحمه الله د دې حدیث په تشریح کې فرمایي: وسوسه د شیطان په فعالیت را منځته کیږي ، ځکه چې هغه د ایمان غل او سارق دی، هغه تل په دې لټه او کوشش کې وي چې څنګه ایمان او مومن ته زیان اوضرر ورسوي او سره جدا یې کړي، له شک پرته غل هغه کور او ځای ته داخلیږي چې هلته څه وینې او سرمایه پکې موجوده وي، که کوم ځای او کور خالي او هسې مخروبه وي هلته هیڅکله هم غل نه ځي، نو چې شیطان د مومن په زړه کې وسوسې اچوي هغه د دې خبرې ښکارندویې کوي چې د مومن په زړه کې د ایمان لویه سرمایه پرته ده، نو په یو چل او فریب ترینه هغه سرمایه لوټل او ضایع کول غواړي او چې د چا په زړه کې د ایمان سرمایه او شتمني نه وي موجوده شیطان هیڅکله هلته نه داخلیږي او نه وسوسې وراچوي.(اصلاحی خطبات: ۱۵۸/۹)

## له وسوسو څخه نجات

الله تعالی انسان له وسوسو څخه د خلاصون لپاره خپل رحمت او د حق حمایت ته رابولي او له شیطاني وسوسو څخه د نجات یو اغیزن لار الهي فرمانونو ته سرا ښودلې دي، چې د غه کار په خپله د شیطاني دوکو او فریبونو په مقابل کې لوی سپر ګرځي او مخه یې ډب کوي، الله تعالی فرمایي (وَإِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ إِنَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ) ؛ کچیرې د شیطان له لوري تاسې ته وسوسه ورسیده، نو الله تعالی ته پناه یوسی، بیشکه چې هغه اوریدونکی او پوه دی .(اعراف: ۲۰۰)

خو پناه وړل هم مرتبې لري، په ژبه پناه داده چې انسان کله له شیطاني وسوسې سره مخ شو نو په ژبه دې ووایي (اعوذ بالله من الشیطان الرجیم. بله مرتبه د پناه وړلو الله ته د زړه ده ، چې په خپل ټول قوت او توجه به د الله تعالی قدرت ته ځان تسلیموي، د مغفرت او عفوې التجابه کوي، په دې ډول به انسان له معصیت او انحراف څخه نجات پیدا کوي او په شیطان به غلبه مومي

یوه بله د نجات لاره او د وسوسې نسخه داده چې مسلمان به په خپل عبادت او الهي پیروي کې د محکمې ارادې لرونکی وي، وسوسې ته به ارښت نه ورکوي، مثلا که په لمانځه کې هرڅومره وسوسه ورولویده چې کیدای شي لمونځ یې ناقص کړي وي، اهمیت دې نه ورکوي، بلکې هرڅه دې الله تعالی ته سپاري.

رسول الله صلي الله علیه وسلم دوسوسو د دفع لپاره دغه دعا فرمایلې دي چې په کثرت سره بایدوویل شي: «اللّهُمّ اجْعَل وساوس قلبِي خشيتك وذكرك واجعل همي وهواي فيما تحب و ترضى» ؛ یا الله ! زما د زړه وسوسې ستاله ویرې او یاد څخه وګرځوې، او زما غم او وهم په هغه څه کې راولې چې ته یې خوښه وې. (أبوشجاع الدیلمي)

# د ملکي تلفاتو راپور

**د قوس ۱۸ کال ۱۳۹۲**

لکه څرنګه چې د میډیا له لارې ټولو ته معلومه شوه چې د کرزي کوډاګي رژیم یو ځل بیا خپله افغان دښمنه او بشر دښمنه څیره خلکو ته را څرګنده کړه او دا یې یو ځل بیا ثابته کړه چې د کرزي مزدوره اداره د امریکایانو لاس پوځۍ ته ادامه ورکوي او د خپل وطن خلک د پردیو لپاره وژني او د هیڅ قسمه تکلیف رسولو څخه دریغ نه کوي بلکه د عامو خلکو په وژلو او زورلو خوند اخلي او افتخار ورباندې کوي.

د دسمبر له اول تاریخ راهیسې له کله نه چې د مزدورې ادارې خپل عملیات د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ کې پیل کړل او اته ورځې یې دوام وکړ. د اسلامي امارت د مجاهدینو د کلک مقاومت سره مخامخ شول او د مزدورې ادارې ځواکونو ته یې درانه تلفات ورسیدل چې په وار وار هر ورځ په میډیا کې خپاره شوي دي. په دې عملیاتو کې د دې ولسوالۍ ولسوال چې دا دومره وخته یې ارزو وه چې د

ولسوالۍ له ودانۍ څخه راوزي او لګ بهر وګرزي خو په راوتو سره سم د څرخ د نو شار په سیمه کې د ماین ښکار شو او خپله سره د ۶ ساتونکو پکې ومړ او مرستیال یې سخت ټپي شو. په هره ساحه کې دښمن د مجاهدینو د محاصرې

لاندې راګیر شوي وو نو بلاخره په ډېره ورختایي له سیمې ووتل. چونکه دښمن په دې عملیاتو کې خپلو موخو ته ونه رسېده او هغه خپل اعلان شوې موده یې هم پوره تیره نه کړه او د بشپړې ناکامۍ سره مخ شو نو خپل غچ یې له عامو خلکو واخیست. په

عام میشته ځاینو یې ناتاره د هاوانونو او د توپونو بریدونه وکړل او د څرخ د اسې سیمه نه ده پاتې چې پر هغه برید نه وي شوی. تر اوسه پورې چې د عامو خلکو لخوا مونږ ته راپور راکړی شوی دی مجموعه شپږ (۶) عام وګړي شهیدان شوي دي چې یو په قلعه نو سیمه کې دوه د دشتي او قل پَتَنَک سره نږدې سیمه کې او دري نور د قل پتنک غره دې بل اړخ د پنګرام په سیمه کې شهیدان دي شهیدا ښځې او ماشومان دي. همداراز تر اوسه پورې تر شلو (۲۰) کسانو پورې عام وګړي ټپیان شوي دي چې اکثره یې ماشومان او ښځې دي. د تلو په وخت کې یې د بازار په سیمه کې څلورو دکانونو ته اور واچاوه. او دري د عامو خلکو موټرې یې وسوزول. په کومو کورنو کې چې دوی د تالاشي په موخه ورغلي دي هغوی ته یې ډېر مالي تاوانونه رسولي دي له کورونو څخه یې نقدې پیسې او نور شیان غلا کړي دي او په کورونو کې چې هر شي په مخ ورتلل نو مات کړي یې دي. د کورونو دروازې، کړکۍ او شیشې یې ورماتې کړي دي. او عامو خلک ته یې ډېر مالي ځیانونه رسولي دي.

**(د افغانستان د اسلامی امارت د مرکزی حلقې د ملکې تلفاتو د مخنیوي اداره)**

# آداب سلام کردن به دیگران

# از دیدگاه آیات و روایات

مسلمانان وظیفه دارند که نسبت به همدیگر آداب انسانی و اسلامی را رعایت نمایند و یکی از بهترین مراسم رعایت ادب و احترام به یکدیگر دادن سلام است که اسلام به آن زیاد سفارش کرده است چنانچه خداوند می فرماید:

﴿واذا حییتم بتحیة فحیوا باحسن منها او ردوها﴾ (نساء: ٨٦). «هر گاه به شما سلام داده شد پس بهتر از آن یا همانند آن پاسخ دهید» و نیز خداوند می فرماید :﴿فاذا دخلتم بیوتا فسلموا علی انفسکم﴾ )نور: ٦١). «هر گاه به منزلی وارد شدید بر خودتان سلام کنید.«

## کیفیت سلام دادن

کسی که سلام می دهد باید بگوید» :السلام علیکم ورحمةالله وبرکاته «و نیز پاسخ دهنده بگوید» :وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته «و این کیفیت سلام دادن و پاسخ آن از احادیث پیامبر بزرگوار مان استنباط شده است.

عَنْ عِمْرَانَ بن الحصین رضی الله عنه قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النبي *ص* فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيكُمْ، فَرَدَّ عَلَيْهِ ثُمَّ جَلَسَ، فَقَالَ النبيُّ *ص*: «عَشْرٌ» ثُمَّ جَاءَ آخَرُ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيكُمْ وَرَحْمَةُ الله، فَرَدَّ عَلَيْهِ فَجَلَسَ، فَقَالَ: «عِشْرُونَ» ثُمَّ جَاءَ آخَرُ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيكُمْ وَرَحْمَةُ الله وَبَرَكَاتُهُ، فَرَدَّ عَلَيْهِ فَجَلَسَ، فَقَالَ: «ثَلاثُونَ» .«ابوداود، ترمذي.(

از عمران بن حصین روایت است مردي خدمت پیامبر اکرم *ص* آمد وگفت: السلام علیکم جوابش را داد و او نشست، پیامبر اکرم فرمودند: ده. باز شخص دیگري آمد و گفت: السلام علیکم ورحمةالله جوابش را داد و او نشست رسول الله ص فرمودند: بیست. باز هم نفر دیگری آمد و گفت: السلام علیکم ورحمةالله وبرکاته جوابش را داد و او نشست رسول الله ص فرمودند: سي.

شارحین احادیث نبوی می فرمایند: هر کدام از کلمه هایی سلام، رحمت، برکت، ده ثواب دارد که جمعاً سی می شود.

## پاداش سلام دادن

### :۱سلام کلید ایمان و محبت است

َعَـنْ أَبـي هريـرة رضـی الله عنـه قـالَ: قَـالَ رَسُـولُ الله *ص*: لَا تَدْخُلُوا الجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، وَلا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُوا، أَوَلا أَدُلُّكُـمْ عَلَـى شَـيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُـوهُ تَحَـابَبْتُمْ؟ أَفْشُـوا السَّـلَامَ بَيْنَكُمْ) .مسلم.(

از حضرت ابوهريره روايت است كـه رسول الله *ص* فرمودند: وارد بهشت نمی شويد مگر آنكه ايمان داشته باشيد و ايمان نخواهيد داشت مگر آنكـه يكـديگر را دوست بداريـد، آيا شـما را بـه چيـزی راهنمـائی نكـنم هـر گـاه بـه آن عمـل كرديـد يكـديگر را دوسـت خواهيـد داشـت؟ سـلام دادن را در ميـان خودتان رايج كنيد.

### :۲سلام کلید بهشت است

َعَنْ أَبي يوسف عبد الله بـن سـلام رضی الله عنـه قَالَ: سَمِعْتُ رسول الله *ص* يقول: يَا أَيُّهَا النَّاسُ، أَفْشُوا السَّلَامَ، تَدْخُلُوا الجَنَّةَ بِسَلَامٍ.

از حضرت عبدالله بن سلام روايت است كـه رسـول الله *ص* فرمودنـد: ای مـردم در ميـان خودتـان سـلام را پخـش و رايج كنيد و به سلامتی داخل بهشت شويد.

## آداب سلام دادن

َعَنْ أَبي هريرة رضی الله عنـه أَنَّ رَسولَ الله *ص* قَالَ: يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى المَاشِي وَالمَاشِي عَلَى القَاعِدِ، وَالقَلِيلُ عَلَى الكَثِيرِ والصَغيرُ عَلَى الكَبِيرِ) .البخاري.(

از حضـرت ابـوهريره روايـت اسـت كـه رسـول الله *ص* فرمودنـد: سـوار بـر پيـاده، ايسـتاده بـر نشسـته، كـم بـه زيـاد، كوچک به بزرگ سلام دهد.

## سلام تکرار گردد

عَـنْ أَبـي هريـرة رضـی الله عنـه قـالَ: قـال رسـول الله *ص*: إِذَا لَقِيَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَإِنْ حَالَتْ بَيْنَهُمَا شَجَرَةٌ، أَوْ جِدَارٌ، أَوْ حَجَرٌ، ثُمَّ لَقِيَهُ، فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ) .ابوداود(. از حضرت ابوهريره روايت است كـه رسـول الله *ص* فرمودنـد: هرگاه يكی از شما با برادرش ملاقات كرد بايد به او سلام كند و اگر در ميانشان درخت يا ديوار يا سنگی حائل گشت و باز او را ملاقات كرد بايد بر وی سلام دهد.

## سلام از شخص متقی آغاز گردد

عَـنْ أَبـي أُمَامَـةَ رضـی الله عنـه قيـل: يَـا رسـول الله *ص !*الرَّجُلَانِ يَلْتَقِيَانِ أَيُّهُمَا يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ؟ قَالَ: أَوْلَاهُمَـا بِـالله تَعَالَى) .ترمذي.(

از حضـرت ابوامامـه روايـت اسـت از رسـول الله *ص* دريافت شد يا رسول الله دو شخص بـا همـديگر روبـرو ميشـوند كدام يک به سلام دادن آغاز كند؟ فرمود: آنكس كه نزد خداوند برتر است.

## سلام بر خانواده

وعن أنسٍ رضی الله عنه قالَ: قَالَ لي رسول الله *ص :* »يا بُنَيَّ، إِذَا دَخَلْتَ عَلَى أَهْلِكَ، فَسَلِّمْ، يَكُنْ بَرَكَةً عَلَيْكَ وَعَلَى أَهْلِ بَيْتِكَ) .الترمذي.(

از حضرت انس خادم رسول الله *ص* روايت است كه رسول الله *ص* به من فرمودند: ای فرزنـدم هرگـاه بـر خـانواده ات وارد شدی او را سلام بده زيـرا بـرای تـو و خـانواده ات موجـب خير و بركت مي گردد.

## سلام زن به مرد

عَنْ أُمِّ هَانِيءٍ فاخِتَةَ بنت أَبي طالب ل قالت: أَتَيتُ النبيَّ *ص* يَوْمَ الفَتْحِ وَهُوَ يَغْتَسِلُ، وَفَاطِمَةُ تَسْتُرُهُ بِثَوبٍ، فَسَلَّمْتُ

فَقَالَ: مَنْ هَذِهِ؟ قُلْتُ: أَنَا أُمُّ هَانِئٍ فَقَالَ: مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ) .مسلم.(

از حضرت ام هاني (فاخته) دختر ابوطالب روايت است كه روز فتح مكه خدمت حضرت پيامبر گرامی *ص* آمدم در حالي كه غسل ميكرد و حضرت فاطمه با پارچه ای او را ميپوشاند، خدمتش سلام عرض كردم، فرمودند: كيستی؟ گفتم: ام هاني دختر ابوطالب فرمودند: خوش آمدی ام هاني.

### سلام بر زنان بيگانه:

عَنْ أسماءَ بنت يزيدَ قالت: مَرَّ عَلَيْنَا النّبيُّ *ص* فِي نِسوَةٍ فَسَلَّمَ عَلَيْنَا) .ابوداود.(

حضرت اسما دختر يزيد می گويد: پيامبر اكرم *ص* از كنار ما گروهی از زنان گذشت و به ما سلام داد.

### سلام بر كودكان

عَنْ أَنس بْنِ مَالِك رضی الله عنه أنّ رسول الله *ص* مَرَّ عَلَى غِلْمَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ) .مسلم.(

از حضرت انس روايت است كه رسول الله *ص* از كنار بچه‌ها گذشت و بر آنان سلام كرد.

### سلام هنگام ورود و خروج از مجلس

عَنْ أَبي هريرة رضی الله عنه قالَ: قالَ رسول الله *ص*: إِذَا انْتَهى أَحَدُكُمْ إِلى المَجْلس فَلْيُسَلِّمْ، فَإِذَا أَرادَ أَنْ يَقُومَ فَلْيُسَلِّمْ، فَلَيْسَتِ الأُولَى بِأَحَقَّ مِنَ الآخِرَةِ) .ابوداود،البخاري في الأدب المفرد.(

از حضرت ابوهريره روايت است كه رسول الله *ص* فرمودند: هر گاه يكی از شما به مجلس رسيد، بايد سلام كند و هر گاه خواست بر خيزد بايد سلام كند، زيرا سلام نخست از سلام آخر سزاوارتر نيست.

### سلام بر كفار

### كفار بر دو نوع هستند: ذمي و محارب

محارب: كافرانی هستند كه با مسلمانان در جنگ هستند، بر آنان سلام جائز نيست و اگر آنها سلام دادند طبق نظر بعضي از اهل علم و دانش، پاسخ سلام نيز داده نشود، چون سلام و پاسخ آن از نشانه‌ها و علايم دوستی و محبت است و مسلمانان با كفار محارب، هيچگونه دوستی و آشتی ندارند.

ذمي: كافرانی هستند كه در برابر دولت اسلامی تسليم شده اند و با مسلمانان جنگ و مبارزه ندارند، ولي باز هم مسلمان مبادرت به سلام نكند، زيرا رسول الله *ص* می فرمايد:

عَنْ أَبي هريرة رضی الله عنه قالَ: قالَ رَسُولُ الله *ص*: لا تَبْدَأُوا اليَهُودَ وَلا النَّصَارَى بالسَّلام. إِذَا سَلَّمَ عَلَيكُمْ أَهْلُ الكِتَابِ فَقُولُوا: وَعَلَيكُمْ) .مسلم.(

از حضرت ابوهريره روايت است كه پيامبر اكرم *ص* فرمودند: به يهودی و نصرانی آغاز سلام نكنيد. ولی اگر آنها سلام دادند در پاسخ بايد گفت: «وعليكم.«

أَنسُ بْنُ مَالِك رضی الله عنه قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ *ص*: إِذَا سَلَّمَ عَلَيكُمْ أَهْلُ الكِتَابِ فَقُولُوا وَعَلَيكُمْ) .مُتَّفَقٌ عليه.(

از حضرت انس روايت است كه رسول الله *ص* فرمودند: هر گاه اهل كتاب به شما سلام كردند بگوئيد: عليكم.

### حكم سلام و پاسخ آن

علامه ابن عبدالبر /اجماع اهل علم را نقل كرده كه سلام سنت و پاسخ آن فرض كفايه است.

# (( ای زما ځوانه وروره ! ))

هدایت الله

ای وروره ! ټولنیز حالات داسې حساس او برباد ونکي پړاو ته رسیدلی دي چه د خیر او فلاح کشتی دفحشاء او فساد په سمندر کې ډوبیدونکې ښکاری د اصلاح امکانات ورځ په ورځ له منځه تلونکی بریښي، د زوال نښې رابرسیره شوی د عزت او عفت حقیقت د بداخلاقي اوبې عزتی په مجازي پردو کې پټ شوی، د یوې عامې رسوایی اوبې حیایی ټول شرایط برابر شوي، نو پداسې حالاتو کې چه موږ له هرې خوا په بشپړه توګه نا امیده شوي یو تا ته یو نصحت کوم:

ای وروره ! ځواني دټول عمر یو نه راګرځیدونکی پسرلی دی د داسې پسرلیو قدر کول دهر ځوان یوه دینی او اخلاقي لویه او مهمه فریضه او زمامداری ده دځوانی په پسرلی کی د هر چا د ژوند د امیدونو غوټی په غوړیدو شي. له هرچا سره یو نوی احساس اویوه نه ما تیدونکی جذبه پیدا شي. خونیک بخته هغه څوک وي چه خپل غلط او شیطاني احساسات راقابو کړي. دچاد کورونو او کنډرونو وهلو ته یی ونه لمسوي، دچا حیاء او عفت پریوتو ته یی مجبور نکړي اودچا د ناموس لوټلو ته یی ونه هڅوي.

ای وروره ! هغه شیطان چه ته یې پرمخه کړی یې او د ژوند له هسکو او ټیټو څخه یی ناخبره ساتلی یې ډیر مکار هوښیار او ځیرک دی پام کوه که یو ځلی دې ورسره ملګری شو نو بیا به یی له دوستی څخه ترعمره پوری خلاص نه شې. دا د بنګو خمارنه دی همیش په مغزو کی ګرځی او تا به داسې شیانو ته هڅوي چه هغه یوازې نوروته نه بلکی تاته پخپله هم یوه لویه صدمه او ضربه درکولای شی بس تا په قیمتی ځوانی اور پوری کولای شي او ټول ژوند دی په غم اوویر اخته کولای شي.

ای وروره ! تابه دې ګلونو د ښایست ننداری داسې خمار اوبی پرواکړی چه د پټو اغزیو له لاسه به یی زخمی زخمی شې کوم چه تا نه وي لیدلی اودې ګلونو ترپاڼو او څانګولاندې پټ وي له عفتونو سره لوبې کول دې هغه اغزی لرونکی ګلونو سره لوبی کول دی چه یوه لحظه خمار اوزړه وړونکی ښایست یی تاته دژوند ترپایه اور پورې کولای شي اوتاهسې سوځولای شي چه دود اولوګی یې څوک نشي لیدای.

ای وروره ! ته چه په کومو ښکارونو پسې وځې اودښکار کولو کوښښ یې کړې نو هغه پټ دامونه هم له نظره مه وباسه چه تا اوستا پشان ډیر هوښیارښکاریان یې ترعمره په مضبوطو دامونوکې ښکیل کړي. داپټ دامونه خوبه خامخا یوه ورځ ستاله سره هم هغه خمار اونیشه والوزوي کومه چه ته یې داسې ړوند اوبې پرواکړی وې.

عمل ندي بلکه له بلاګانو څخه ځان ساتل دهرهوښيار او ايماندار بنده خورا لويه هوښياري او ايمانداري ده. د شهوت او غرور خونړي بلا هميشه وازکومي ګرځي خو پام کوه د دي بلاګانو وازکومي ته د ځان سپارلو او نغړلو موقع او فرصت مه ورکوه.

ای وروره ! هرې دروازې ته نا منا سب و دريدل او په هره کوڅه کې د عفتونو دلوټلو په غلطوارادو ګرځيدل به تا تر کومه وژغوري او د الوټلی مال به ستا د کوم درد دوا شي. پداسې حال کې چه خپله دروازه کوڅه او خپل عفتونه هم دريادکړه آيا ته به هغو غلو او داکوانو ته هم غلی او بی تفاوته پاتې شې کوم چه ستا د کور دروازې درماتوي او يا ترکندړونو دراوړي او ستاسو ناموس لوټي؟ وو ايه آيا داسې څوک شته چه په دومره آسانۍ او بې پروايي له خپلې حيا او آبرو څخه لاس په سرشي او د داسې کړو ننداره وکړي چه نه عقل نه ايمان او نه يې غيرت منلای شي. او داسې غلو او فاحشو انسانانو ته څوک سکوت کولای شي چه هغه يې د کور مال او متاع په ډيره بی رحمی او بی ايمانی غلاکوی.

ای وروره ! ته چه د ځان لپاره پرده، عزت او حياء غواړې نو داڅه درباندې کيږي چې د نورو لپاره ستا په زړه کې د رحم او کرم ټکی نه پيدا کيږي او که نه يې د ځان لپاره غواړې او نه د نورو پروا لرې نو لږ او ډير خوله هغو خو نړيو بلاګانو څخه وويريږه چه د داسې کسانو لپاره يې خوله خلاصه نيولې او په يوه ساه هرڅه له خپله حلقه په ډيره بې رحمۍ تيرولای شي.

ای وروره ! دبدکاری او بداخلاقی په دور زنګ وهلو ځنځيرونو چې څوک تړل شوی او يا يې ځانونه پری تړلی وو يوازی توبه يا مرګ ورته خلاصون او امان ورکولايشي. او که نه ځان د زنا کارۍ او بدکارۍ په دامونو کی تړل او ايسارول او داورته نوره لمن وهل به يوازی تا او ستا ملکری ونه سوځوي بلکې ډير نور به هم د دې برباد ونکې اورخس او خاشاک شي او د ازمور اجتماعی ژوند به هم د ځنګلی ځناورو په شان د بی رحم او د اخلاقی ښکار شي.

ای وروره ! دی نيشو تورلوکی او دفحاشی سره اورونه هغه دوی توری بلاکانی دی چه ځانونه کورونه کلی او اولسونه سوځوي. نيستۍ او بربادۍ ته زيږوي. دنيشی او رهمداسې لکه څنګه چه يې ګوری تن او وجود لوګن کوي دې ته ورته زموږ په مادي معنوي، ايمان، اخلاقي او اجتماعي هستيو اور پورې کوي. او دفحشأ اورهغه د سرې پټ اوردی چه کله غرغراندې شي نو بيايې راقابو کول او يا له منځه وړل د هيچا په وس او قدرت کې نوي. داسې لوی هستې د تورولوخړو خوراک شي چه په نوم يادولويې هم د چاره له درده نه قراريږي داسې و با خوره شي چه زموږ هرڅه پکې پردي نيست او نابود شي.

نو ته لږ دخدای پخاطر او ددې دريدده او ځوريدلی اولس په حال رحم او کرم وکړه او ځان په سوچه اسلامی اخلاقو سمبال کړه چه له يوی خوا زموږ اسلامي او اخلاقي تشخص هم وشي او له بلی خوا زموږ ديني او اخلاقي زمه واري ترسره شی.

ای وروره ! څومره به وو ايو ترڅو به يې وليکو خوله دې دواړو غوره داده چه لمړی پرې عمل وکړو او د خپلو اسلام او اخلاقو پواسطه د خلکو زړونه تسخير کړو په نتجه کې به موږ ټولې ايماني، اخلاقي او اجتماعي ښيګڼې ترلاسه کړی وي او د موږ غوره اسلامي اخلاق او کړنلاره به د نورو لپاره پند او عبرت شي دی لويدلې او کږې ټولنې لپاره به يوه تکيه شي، په نتجه کی به د آدم اولاد ته د خير او فلاح زمينه برابره او ټول به سعادت او اطاعت په يوه ښکلي چاپيرچل کې د آرام سکون، اطمينان او راحت ساه واخلي

(آمين)..

# د حضرت لقمان حکیم نصیحتونه

(عاصم وطنپال)

۱ : ځویه !له قرضه ځان ساته ځکه چې قرض دورځې ذلت او د شپې غم وي.

۲: ځویه !زه ډیر ځله په خپلو خبرو پیښمانه شوی یم خو په خپلې چوپتیا تر اوسه نه یم پیښمانه شوی

۳: ځویه !له سواله ځان ساته ځکه چې سوال د مخ حیا ختموي.

۴: ځویه !دا هم دروغ دي چې شر به شر ختم کړي، ځکه چې اور دبل اور تر څنګ که بل کړای شي نو اور به مړ نه کړي، بلکې شر په خیر سره دفعه کیږي( ګناه په حسناتو ، او د ناوړه عمل بدل په نیکیو کیږي) لکه اوبه چې اور ختموي.

۵: ځویه !توبه مه ځنډوه ځکه چې مرګ ناڅاپي راځي.

۶: ځویه !که په لمانځه کې ولاړ وې نو د زړه حفاظت دې کوه ، او که په خوراک مشغول وې نو دستونې او خیټې ساتنه دې کوه ، او که دبل په کور کې وې نو دخپلو سترګو خیال ساته ، او که دخلکو په مینځ کې وې نو دخپلې ژبې حفاظت کوه.

۷: ځویه پام ! له حسد او کینې ځان وساته ځکه چې دا دین فاسدوي ، نفس ضعیفه کوي ، او په اخر کې پښمانتیا وي .

۸: دغصې اول لیونتوب او آخر یې پیښمانتیا وی .

۹: ځویه ستا ډوډی دې پرهیزګاره خلک خوري او د کارونو مشوره له علماءو سره کوه.

۱۰: ځویه ! مخکنیو خلکو به په خپلو هغو کړنو فخر او ریا کوله چې تر سره کړي به یې و ، او اوس په هغو هم فخر کوي چې کوم کارونه یې نه وي کړي.

۱۱: ځویه !که څوک دې دوست کاوه نو اول یې په غصه کړه که په همدغه حالت کې یې در سره انصاف وکړ نو بنه ده کنه ځان ور څخه وساته.

۱۲: ځویه !دومره مه خوږیږه چې څوک دې تیر کړي او دومره تر خیږه هم مه چې څوک دې وغورځوي.

۱۳: که چا دخپل کار راز وساته ، نو د هغه کار اختیار به یې په خپل لاس کې وي.

